# کندهار

٢



زړه ستني مو کېږدي ستا په لوري
اميدونه مو تړلي په تا پوري

# همایوني معظم اعلیحضرت
# په کندهار کې

پنجشنبې دحمل په ۳۰ نېټه معظم همایوني اعلیحضرت د کندهار، ګرشك، فـراه، هرات، میمنې شبرغان اومزارشریف دانکشافي اوعمراني چارو دلیدودپاره د کابل څخه حرکت راوفرمایه.

ښاغلي صدراعظم، د کابینې غړي، لوی درستیز، د سلطنتي دراسې کورنۍ محترمین غړي او عسکري منصبداران د کابل په هوائي ډګر کې دخدای په اماني دپاره حاضرسوي وه همایوني معظم اعلیحضرت دعسکري قطعې داحترام ترمنځلو اوحاضرینو سره دخدای په اماني وروسته په ۹ بجې او ۱۵ دقیقې په سلطنتي مخصوصه الوتکه کې د کندهار پرخوا حرکت وفرمایه.

دهمایوني ذات الوتکه پر ۱۱ بجې او ۵۰ دقیقې د کندهار په هوائي ډګر کې راکښته سوه.

د کندهار دنائب الحکومه کفیل اودعسکري قواؤ قوماندان ډګرجنرال خان محمد، لښکري لویو منصبدارانو، ددائرو اومؤسسو رئیسانو، د معارف زده کوونکو، دښار اواطرافو مخورو دالوتکو په ډګر کې دخپل ګران تولواك هر کلی وکړ، دهمایوني معظم اعلیحضرت هر کلی په عسکري احترامانو اودتړبو په ډزو سره وسو دوړو کوماشومانو ډالۍ ورکړو په نمایندګۍ سره دملو کانه ذات په حضور د ګلو ګېډۍ وړاندې کړې اود ښهرباري حضور څخه دلطف اومهرباني مورد وګرزېدل.

ښاغلي لعل محمد کاکړ په مفصله وینا دوګړو داحساساتو اودسلطنت مقام ته ددوی دخلوصیت په باره کې اود وروستنیو پرمختګو څخه چې په کندهار کې سوي دي دشکران اوښه راغلې عرض د شاهانه حضور ته وړاندې کړ همایوني اعلیحضرت هم دهیواد دپرمختګ اود ملت دآرامۍ دپاره خپلې ښې هیلې اوآروزګانې څرګندې کړې.

همایوني ذات دخلګو د کتارو په منځ کې تېرېدلو اود هریوه سره د شاهانه لطف اومهربانۍ تر اظهارولو وروسته دښار پرخوا حرکت وفرمایه.

پرلاربانـدې دالوتکو دپخوانی ډګرڅخه دشاهانه ذات تراسنوګنځی پورې په زرو زرو خلګ دسړك پر دواړو غاړو کتار، کتار ولاړوه اود دعمردي ډېرسه زموږ ګران اومحبوب تولواکه په لارو اود ګلانو دپانو اوګېډیو په شاروالو اونقدیمولوسره ئې دخپل ګران اومحبوب تولواك هر کلی کاوه، دارو او ښځو دلیسو زده کوونکو دلارې په هره برخه کې دزړه له کومې هر کلی وایه اود خوښۍ احساسات به ئې ښکاره کول.

د همایوني اعلیحضرت موټر دلارې تروهلواود هر کلي دمجللو دروازو څخه تر تېرېدلو وروسته پر دوولس نیمې بجې د کندهار د دارالحکومه ګۍ دماڼۍ په منځ کې ودرېدی. د ثور په ۳۲ منځ کې،

# کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی

مسئول چلوونکی:

ا، م «کرزی»

اداره: د شهیدانو واټ

د دولتی مطبعې څنګ ته

د ۱۳۴۱ لمریز کال د [ثور] میاشت
د ۱۳۸۱ قمری کال د [ذیحجه] «
د ۱۹۶۲ میلادی کال د [ می ] «
د دریم کال دوهمه ګڼه
پرله‌پسې ګڼه [۳۶]

کالنی «بیه»
په کندهار کښې [۳۸] افغانۍ
په‌دننه مملکت کښې [۳۲] «
په دباندنیو هیوادو کې یو ډالر

## ددي ګڼې مضامين



همایوني معظم اعلیحضرت د کندهار په هوائي ډګر کې
د تشریفاتي ګارد سلام مني

# ټولواکي

د زرګونو کلو راهیسې په افغاني جامعه کې ټولواک د ملي وحدت محور او د ولس د ټولو طبقو د هیلو مرکز دی او د شاه دوستۍ مینه او عشق موږ ته له پلرو او نیکه ګانو څخه پاتې یو قیمتي میراث دی .

کله چې موږ د ټولواک نوم پر ژبه راوړو نو په زړونو کې مو د محبت ډک احساسات په څپو راځي او روح مو له یو دنیا خوندونو څخه سرشاره کېږي ځکه دا زموږ ارغوني عنعنه ده چې ټولواک ته په ډېره درناوي د اخلاص سره ګورو او د دوی د امر د اجراء په لار کې به هر ډول ایثار او قربانۍ ته چمتو ولاړ یو .

کله چې موږ د خپل ستر افتخاره څخه ډک تاریخ ته نظر اچوو نو کومې سترې کارنامې چې د سیاست او عمران په برخه کې زموږ د ملت په نصیب شوې دي هغه د ټولواک د عالي فکر، پاخه تدبیر او نه ستړي کېدونکي زحمتونو نتیجه ده .

که موږ خپل تېر ژوند تر مطالعې لاندې ونیسو او د هغه ژوند سیاسي، اجتماعي، اقتصادي او نورې انکشافي چارې سره وڅېړو نو به دا په ګډه او کامل اتفاق سره په یقیني ډول ووایو چې د اعلیحضرت المتوکل علی الله محمد ظاهر شاه د سلطنت ځلانده او روښانه عصر زموږ په تاریخ کې یوه بې ساري د ارتقا او امنیت زمانه ده د دې منور او خواخوږي ټولواک د سلطنت په فرخنده عصر کې د افغاني جامعې د مادي او معنوي ژوند د اعتلا او پرمختګ د پاره داسې کارونه شوي دي چې نور عصرونه ئې ساری په یاد نه لري .

په دې کې شک نشته چې د استعمار دوه سوه کلن سیاسي تاریخ ګورو چې د ختیځ هر ملت له هغه څخه متأثر شو ګران افغانستان ته ئې هم فرصت ورنکړ چې د ژوند خپلې نیمګړتیاوې پوره کړي او د ولس د مترقي آرزوګانو پوراینه وکړي نو ځکه افغاني جامعه د تمدن له کاروان څخه وروسته پاتې شوه او د زمانې نوي فکر څخه ځنډېدې خو بیا هم دا زموږ د تېر تاریخ ستر شهامت دی چې خپل وطن او خاوره ئې د پردیو له تالاکه په ډېره مېړانه خوندي کړه او د خپل هېواد ملي نوامیس ئې وساتل که څه هم د پردیو واکونو څخه استعماري سیلاب د ژوند ټولې چارې په چپاو یووړې او څه ئې ورپرېږه نښوول .

څرنګه چې زمانه د ترقۍ او تکامل پر خوا روانه ده همدغه شان د ملتونو په ژوند کې هم تحول او د یوه حالت څخه بل حالت ته اوښتل د اجتماعي طبیعت یو نه ماتېدونکی دود دی .

خو ملتونه د ولسي ژوند په داسې وختونو کې د خپلو لارښوونکو پاخه فکر، کلکې ارادې او خواخوږي ته سخته اړتیا لري .

نو افغاني جامعه نېکمرغه ده چې د خپل تحول په عصر کې د یوه داسې مدبر، زړه سواندي

او پر ملت مین پاچا تر سیوري لاندې په ډېر متانت او مال اندیشۍ دخپلو دیني او ملي شعایرو سره سم دعصر ایجاباتو ته لبیك وائي او دخپلو ایمکرنیاو د دوره کو او دباره ګړندي ګامونه اخلي. نن چې موږ د خپلې جامعې ټولې طبقې وینو نو هغو دزړه په اخلاص او صدق وصفا سره دخپل محبوب پاچا وارشاداتو او لارښوونو ته د فکر او زړه ورونه پرانستلي دي او د هغه حکیمانه ذات وصیتونه ئې دژوند په ټولو برخو کې منلي دي ځکه زموږ دملت ټول افراد په دې حقیقت پوره پوهیږي چې د همایوني اعلیحضرت په مبارك عصر کې زموږ دژوند په هره برخه کې راز راز تحولونه راغلي دي. او دژوند سویه مو نسبت و پخوا ته له هره پلوه پرمختللې ده.

نن دهیواد په ټولو سیمو کې د معارف وړانګې خپرې سوې او په هغو زړو کې کلي کې ښوونځي پرانستل سوي دي افغاني هلو کان او نجوني په دیماسانه شرایطو سره بخپلو زړه کړو انګیادې په ښارونو کې لیسې او په مرکز کې د عالي تعلیماتو دپاره پوهنځي جوړ سوي دي چې کال په کال په زرو تعلیمیافته ځوانان له هغو څخه دوطن دخدمت دپاره راوزي.

څرنګه چې افغانستان دخپل طبیعي او جغرافیائي وضعیت له مخې یو زراعتي مملکت دی نو ځکه د هغه د کرهڼې ته په عصري توګه دېره پاملرنه وسوه او نن د افغانستان په ټولو ولایتونو کې پاستر داو بو بندونه جوړ سوي دي او یا د جوړېدو په حال کې دي په تېره بیا په کندهار او هلمند په اوه کې خو د زراعت په برخه کې داسې لوئې پروژې وسرته ورسېدې چې زموږ ټول بزګران او ځمکن داران ئې آرام او دادمن کړل.

دغه رنګه د افغانستان اوږدو لارو اود سړکانو جوړولو ته پاملرنه وسوه نږدې دی هغه وخت چې دهرات او کندهار سړك دې تیار سي او د کندهار او کابل ترمنځ اوږه لار دې په اتو ګړیو کې ووهل سي د الوتکو دپاره میدانونه جوړ سول او نن د افغانستان څخه د نړۍ وهرهیواد ته دالوتکې په وسیله سره تګ او راتګ کېدای سي.

په دغه شان دخلکو وروغتیاته توجه وسوه دپرساري مرضونه د کلکې مجادلې له اثره له منځه ولاړل او نن زموږ ولس د صحت داوی نعمت څخه برخه من دی لیکن تر دې ټولو لوی بریالیتوب چې د همایوني اعلیحضرت دسلطنت په ځلانده عصر کې دافغاني جامعې په برخه سوی دی هغه دافغانستان خارجه سیاست دی چې د ټولو نظامي بلاکو د شمولیت څخه سائل سوی اود یوه بېطرف سیاست او آزاد قضاوت پیروي کوي چې دا بریالیتوب نه یوازې زموږ د ملي مصالحو ضمانت کوي بلکه د نړۍ د سولې او بین المللي امنیت په لار کې هم ستر خدمت بلل کېږي.

بل غټ ګام چې زموږ د ګران تولواك په عصر کې د قومي وحدت په اوری اخستل سوی دی هغه د پښتونستان د خلکو د آزادۍ مسئله ده دا موضوع څرنګه چې دافغانستان دپاره دژوند او مرګ مسئله ده نو ځکه افغان ملت دخپل تولواك څخه دزړه له کومې ممنون *



همایوني معظم اعلیحضرت د احترام گارد د کندهار په هوائي ډگر
کې معاینه کوي

شاغلی ع، ا «فرحتی»

# مهر شاه

خیال روی تو، گر بگذرد به گلشن چشم
دل از پی نظر آید بسوی روزن چشم
بیا که لعل و گهر در نثار مقدم تو
ز گنج خانهٔ دل می کشم به مخزن چشم
«حافظ»

از مفاخر باستانی و شعائر قدسی ملت افغان، که از گذشت زمان غبار تیره گی بخود نه گرفته و دست حوادث روزگار پردهٔ پندار زشت بر آن کشیده نتوانسته است یکی مهر شاه و دیگر حب وطن است. اگر ما آزادی خود را دوست داریم و هر گاه به آبادی میهن مان میکوشیم

باری غیر دوستی و علاقه شاه قرنی وجز آب و هوائی وطن قرنی نداریم. هر خانه بزرگ میهن، شاه را رأس الرؤس دانسته وما فرزندان کوچك و بزرگ، برای نشو نماء کسب انرژی وحصول قدرت، بسط و توسعه ساحه حیات خود به دامان عطوفت وظل شفقت او پناه میبریم از لطف او استمداد

جسته بنوازشش شاد میگردیم ما م وطن اگر بما درس وفا و محبت، صداقت و خدمت می آموزد اما پدری بزرگ مثل شاه مارا به دانائی و توانائی آزادی و راد مردی ترقی و تعالی میرساند. امروز که شاه از آسمان عظمت وجلالت به زمین اینولا نزول اجلال میفرماید مصداق یحی العظام رمیم از وجودش ظاهر و ما مردم این سامان با بضاعت مزجات اما قلوب آکنده از مهر وی میگوئیم که:

گر زراه سفر آن سرو روان باز آید
بتن مرده دلان قد روان باز آید

اگر ما به پیشگاه مبارك شاه ترقیخواه خود صمیمانه و بی شائبه، عرض خیر مقدم میگوئیم باری نه مبالغه گوئی خواهد بود، و نه گزاف سرائی، زیرا حرمت مقام شاه و محبت وطن

*دی چی د دوی د مظلومو ورونو د آزادی او بشری حقوقو حمایت ئي کړی دی. لنډه ئي دا چی زموږ تولی اجتماعی ښکمرغی اود ژوند ټولو برخو کی ترقی او انکشافونه د شاهانه ذات د همتری کیدو نکی زحمتونو محصول دی.

نو اوس چی معظم همایونی اعلیحضرت کندهار ته تشریف راوړی او کندهاریانو ته ئي دخپل دیدار افتخار بخښلی دی دا به زموږ تر اوسه پوره نه هیریدو نکی خاطره وی دخدایه غواړو چی زموږ د محبوب شهریار ورځی ښې په کندهار کی په خوښۍ او سلامتۍ سره تیری سی او هم آرزو لرو چی د افغانستان ملت د دوی د سلطنت په بختوره دوره کی د ترقۍ او زیاتو مدنی پرمختګونو مدارج طی کړی. «ام د کرزی»

# د علم النفس پېژندنه

[۳]

ددې طریقې بیان په تفصیل سره دادی :-

۱- داچې دانسان خپل عقلي اعمال تر مراقبت لاندې وي او ددوی ونقلباتو ته ئې ورپام وي او ددوی حرکات، سکنات او حالات په مختلفو وختو او ځایو کې ګوري .

۲- بل داچې ددغو عقلي حالاتو تاثیرتې په خپلو هغو اعمالو کې چې له ده څخه صادرېږي تر ملاحظې لاندې وي مثلاً خپلو خاطرو ته ئې ورپام وي او ددوی تحلیل او تعلیل ئې په نظر کې وي او څه خو بونه چې ویني هغه ورپه یاددوي او ددغو شیانو په څېړنه او پلټنه بوخت وي همدا ډول په دې پسې سرګرزوي چې د خپلو خاصو نفسي امیالو محرك او سر وپېژني که ئې ځینې میلونه قوي وي دهغو دقوت سبب معلوم وي که ئې ځینې ضعیف وي دهغو دضعف سبب او له ځانه څخه داپوښتي چې ولې پسوه کار ته په ډېره خوشالي او هوس سره اقدام کوم خو په داسې حال کې چه له بله کاره څخه مې بیا بد راځي او ولې چې د بوټو سره مخامخ شم نو مې ځنې راځي او له بل بوه څخه مې بیا بده نه راځي او ولې مې پوښي په یاد کې پاتېږي او نورمې هېرېږي او ولې چې ګاهې وخت غوادم چې یو څه دی ووایم نو حافظه هغه نه را په یادوي او یا غوادم چې یو څه دی ووایم خو بله خبره مې تر خوله ووزي له دې قسمه

از سنن قدیمی و عنعنات ملی افغان‌ها بوده وجـود شان را سمبول شرافت و افتخار ملی نگهبان توانای حریت وحراست خاك خود می شناسیم از جانبی این شاه‌رازباد عزیزو گرامی میداریم ازاینکه: عهدهمایون سلطنتش هـر روز بـه دفتر افتخارات بـزرگ کشور ما برگی از جـدار افزوده ، رهنمائی هـای پرارزش شاه توام بـا افکار خردمندانه بزرگان مملکت، من جمیع الجهة کشورما را به ترقیات عدیده شگرف نـائل ساخته از پرتو توجهات عـالیهٔ ذات همایونی اش تمام بـکترین زوایای زنـدگی فـردی و اجتماعی ما به نورعلم ومعرفت آبادی وعمران، رفاه وارامش و نهضت‌های نوین مدنی و اجتماعی روشن گردیده است اکنون مفتخریم که دردنیای وسیع و باعظمت کنونی وطن عزیز وبس عزیزما افغانستان بـه سهم بزرگواری خود رسیده ودرمجامع بین المللی ازحقوق مادی و معنوی خـود کاملاً بهره‌مند است مانه تنها امروز بلکه همیشه باید به شکران نعم موجوده؛ با امعان نظر به عقب مانده گی هـای گذشته روزهارا عید دانسته وشب‌ها جشن برپا داشته، بامسرت و خوشی، طـول عمر شاه‌جوان بقای دولت سردار بزرگ و قائد ملی ، سعادت و کامیابی ملت رشید افغان را از خدا بدعا خواهیم .



د همایونی معظم اعلیحضرت د تشریف راوړلو په وخت کی د کندهار په
هوائی ډگر کی د وړوکو له خوا د گلو گېډۍ شاهانه حضور ته وړاندی
کېږی او د شهریاری ذات له خوا د لطف او مهربانی مورد گرځی،

په زړو مختلف عقلي اعمال چې یو انسان ئې په مختلفو ظروفو کې په خپل ځان کې ملاحظه کوي .

نو موړی طریقه چې ده په علم‌النفس کې یوه ډېره پخوانۍ طریقه ده چې پخوانو خلکو اعتماد پر درلودی او نوی پرهان ئې هم پالي مګر پر خلاف دې اکه ځرنه چې اهمیت ور کړه سوی دی او پاشانم سوېدنه ځو عیبونه او نواقص لري چې و ناپتو حقایقو ته د رسېدو په لار کې یوازې دغه طریقه کافي نه ده چې اعتماد دې پرسانډی وسي ځکه :-

۱- چورتونه او فکرونه ژر ژر سره اوړي او د ذهن ومخ ته چابك چابك تېرېږي نګ و رانګ ئې هر ګوره سرعت لري او په دغسې حالت کې د دوی ملاحظه ډېر سخت کار دی .

۲- کله‌موږ خپلو عقلي اعمالو ته تر پېښېدو وروسته نظر را وګرزوو خو موږ دا نه‌سو کولای چې هغه اعمال دې په هغه‌لومړني ډول سره راستون کړو بلکه هرومرو ګډوډي او کمي پکښې راځي او یا په‌نو مبالغه پکښې کوو ( خو مقصد داچې هر عمل د خپلو پېښېدو په شکل تر ملاحظې لاندې نه‌سو راوستلای ) مترجم

۳- کله‌موږ د ملاحظې د باره یوه عقلي حادثه کافي زمانه دوام‌داره فرض کړو او غواړو چې تر ملاحظې لاندې ونیسو نو په‌دې وخت کې خو زموږ عقلي طاقت و دوو برخونه وېشل کېږي .

۱- یوه ئې هغه برخه ده چې ملاحظه کوونې بله هغه برخه ده چې تر ملاحظې لاندې ده نو له‌دې کاره سره زموږ برخې کمزوري او اضطراب نیولی دی ځکه ناسو ویني چې کوم وخت وغواړی چې په‌دې وپوهېږي چې څنګه لیکنه کوي او یا څنګه تګ کوي او یا څنګه خطبه‌وایاست په‌داسې حال کې چې دغه اعمال مو هم جریان لري نو ناسې به وویني چې په اعصابو کې مو اضطراب پېښېږي لیکنه مو ګډوډه کېږي او په تګ کې مو پښې چاروزي او د خطبې په دېن کې درېږي او همدا ډول چې غواړې د خوشالي په مزه او د خوابدي په‌وخت کې د ځان ملاحظه شروع کړې نو د دغې ملاحظې سره سم د خوشالي مزه او د خوابدي تلخګی کمبوت کړي .

٤- کله‌موږ دا فرض کړو چې دونه‌قدرت درسره سته چې یو تېر سوی ذهني عمل بیرته پخپل اصلي شکل را ګرزولای او دا درته اسانه ده چې خپل تېر سوی عقلي اعمال دې تر دقیقې ملاحظې لاندې راولې خو دا خبره درته ګرانه‌ده چې یوه حادثه‌دې په‌خپلو خبرو کې هغه‌شان تعبیر کړې چې د هغې واقعي حقیقت دې تصویر کړي ځکه غالبه خو داده چې په بیانولو کې ئې زیاتوب او یا کمي درڅخه کېږي او یا هغه څه چې نه ئې بیانوې په‌داسې الفاظو او عباراتو په‌وی چې اروېدونکي ته به ئې پوهېده مشکل‌وي او د هغه و ذهن ته ښائي هغسې معاني ورو سپاري چې ستا مقصد نه‌وي ځکه الفاظ او عبارات ډېر وخت سړی تېر باسي او خلاف مراد معاني ور کوي او دا هم ور سره سته چې نه‌دی له خپلو عواطفو او میولو څخه متاثر ئې او د حادثې بیان دې کوي نو له‌دې څخه ځرګنده سوه چې هغه څه‌نسی بیا نسولای لکه څنګه چې پېښېږي .

٥. که موږ د [جدول] په ډول دا درسره ومنو چې لوییان خلک چې دي خپل عقلي حوادث په دقیق ډول سره بیانولای سي نو دا کورټ نه سو منلای چې کوچنیان هم دغسې شان کولای سي ځکه د دوی عقلي درجه کښته او د نفسي اعمالو ملاحظه ئې ضعیفه ده او دوی دا قدرت نه لري چې هغه څه چې په زړه ور ګرځي په داسې عبارت دي ښکاره کړي چې له حقیقته سره ئې مطابقت ولري نو ممکن نه دي چې د کوچني نفسیات چې د علم النفس له مهمو موضوعاتو څخه ګڼل کېږي د دې طریقې پر اساس دې په سم ډول سره معلوم سي دغه څه چې د کوچنیانو په باب کې وویل سوه د حیواناتو په باره کې هم دغسې ده.

٦ـ که سړي ته پرده پر دې توا او خبرو بیا هم دا درسره ومنو چې نه د خپل ځان پر دقیقه ملاحظه باندي قادر ئې او هغه څه چې نه ئې ملاحظه کړي دقیق بیان ئې همدارنګه سخت په قدرت کې دی او له دغو ملاحظاتو څخه داسې قیمتي قوانین او اصول په لاس درغلي دي چې هغه تر له مقاله سلو که سره خپله په خوله تطبیق کېږي خو نو بیا دا خبره درته کېدای سي چې دغه مقاله ملاحظه چې ده پوازې مقاله په شخصیت پوري اړه لري او هغه قوانین چې تا ولاس ته دروستلي دي پر بل چا باندې تر له سره نه تطبیق کېږي ځکه د اشخاصو اختلاف چې دی له دې سره اړه لري چې د افکارو ذهني جریان او د فکر وهلو طریقې او عقلونه ئې یو له بله مختلف دي نو پوازې دغسې فردي مشاهدات چې هغه صرف په تا پوري اړه لري یوه داسې علمي طریقه نه ګڼله کېږي چې اعتماد دي پر وسي.

دغه نقائص وه چې نفسیاتي عالمانو ولیدله او دوی ئې ردې ته واداره کړه چې د وخت د نبتېدو د پاره ئې د باطني تأمل په وخت کې ځینې آلات را وایستل چې یو له هغو څخه [کیموګراف] دی.

څرنګه چې د باطني تأمل او ملاحظې طریقه ناقصه ده نو د نفس نو یو عالمانو غوره کړه چې له نورو طریقو څخه استمداد وکړي نه په دې ډول چې دغه د باطني ملاحظې طریقه پر یوه مخ پسې پرېږدي بلکه دغه طریقه له هغو د مختلفو طریقو سره د شپېږمې طریقې سره یو ځای کړي او د دوی په ملاتړ ئې څېړنه کړي شپږمه طریقه داده:-

## خارجي ملاحظه

د دې معنا داده چې انسان د لویانو او کوچنیانو انسانانو او حیواناتو پر اعمالو او افعالو پام کړي او څورت په کښې وهي بیا نو د هغو اعمالو په څېړنه اخته کېږي او د [میکانیکي] له نقطه نظره ځان په پوهوي او څه نتائج چې په تېر ډول ولاس ته راولي هغه له هغو نتائجو سره مقابله کړي چې نورو خلکو ولاس ته راوستلي او اظهار کړي دي نو په دې شان د علم النفس حقائق او قواعد ثابتوب کړي.

دا هغه طریقه ده چې د علم النفس تر له شعوري او مسلکي عالمان ئې بالې پر دغه طریقه او د تجربي پر طریقه باندي مسلکیون پوره اعتماد لري خو دغه طریقه سره له دې عظمته او اهمیته یو موټ عیبونه هم لري. «پاته لري»



د همایوني معظم اعلیحضرت هر کلی د کندهار د وګړو له خوا په ډېر
حرارت او د شاه دوستنی د احساساتو په اظهار سره کېږي.

بناغلی «نومیالی»

# فکر او عمل
# یـــــــو
# د بل متمم
# دی

په دې جاري ژوند کې موږ د ژوند له نقطهٔ نظره دوې ډولې خلک ایډلای شو. یو هغه خلک دي چې د ژوند کولو او ژوند یالو دباره هیڅ مجرا نه لري او یا هر جریان کې چې ژر پېدا شي' بس د هغه جریان مولود ګرځېدلي وي او نور نو نه خپله تېره زمانه له وروستي سره مقایسه کولای شي او نه پر خپل حاضر ژوند باندې چندان حاضر وي بلکه کله ئې څوك درانه بار وي هم تر بار لاندې کېږي او کله ئې څوك مشکلات ور لېږدوي خو دې کار ته اهمیت بیا هم ډېر نه ورکوي. ددې خلکو پر ژوند باندې د شعوري ژوند موضوع نه شي طرحه کېدلای په ژبانه بیا د هغه انساني ژوند چې تر مرتبو پروګرامو لاندې مخ پر لوړه ځي او تر نامرتبو عواملو لاندې مخ پر ځوړه ځي.

رابه سو هغو ډولو خلکو ته چې په ژوند کې د معین پروګرام یالونکي وي او د هغې طرحې په باره کې چې د ژوند دباره ئې خپله واضح مفکوره پر تاسیس کړې وي د هغې په یالو کې هم مجاهده او هم مجادله کوي. دا سې انسانان دا انساني شعوري ژوند په بحث کې د خبرو موضوع ګرځېدای شي ځکه یوازې د دغو خلکو پر حرکت باندې بشري شعوري جریانونه بنا دي او بس. دغه خلک چې ژوند د معینې مفکورې په حدودو کې یالي

البته لومړی مسئله چې د دوی په مخ کې راځي هغه د مفکورې په باره کې د حقیقت او خطاء مسئله ده ځکه ممکنه ده یو سړی د داسې مفکورې په تعقیب کې او پېدا وي چې هغه حقیقت واري او یا د داسې مفکورې په یالنه کې بوري چې هغه په خپل ماهیت کې خطاء وي. لذي خبرو سره چې یوه مفکوره حقیقت او خطاء ته معروضه ده بله خوائې داده چې مفکوره دوه شکله اري چې یو ئې نظري بل ئې عملي یا تطبیقي دی. نظري شکل ئې دادی چې د

سړي په خیالي دنیا کې ئې خیالي وجود واري او تطبیقي شکل ئې هغه دی چې په عملي ژوند کې مظاهر ښکاره وي. اوس نو ددې دباره چې د ژوند د مفکورې حقیقت له خطاء څخه وپېژندل شي خو دا کار دا لازم سوي چې ذهن له غیر طبیعیاتو څخه پاك او ذهنیات د هغه استدلال په چوکات کې تنظیم شي چې د هغه تشکیل صرف د سیاسي طبیعیاتو له موجوداتو څخه جوړ شوی وي. تردې پسې چې سړی یا تطبیقي ډول پسه خپله مفکوره کې د

حقیقي او مترقي شکل نه ور برابرېږي نو هر څنګه مفکوره چې څوك واري له هغې سره مطابق عملي ګامونه اخیستل هم په کار دي. په دې حرکت کې نو ضرور د سړي له عملي تطبیقاتو سره د مفکورې خطاوې په حقائقو بدلیږي او بېله دې څخه چې ارتجاع وکړي بلکه خپل مترقي اشکال ورته ځان رسوي. څوك چې له خپلې مفکورې سره عملي حرکت نه کوي نو دا داسې مثال لري لکه څوك چې د خره په بار کې سپور وي او چورت ئې په آسمانخانو کې ایله ګرځي وي نو نو د خره په اختیار کې وي چې هرې خوا ته ئې وړي خو وړلای ئې شي. بېوه مفکوره چې دا ډول صرف په نظري شکل کې پاتې وي نو ترحقیقت ئې د خطاء احتمال زیات دي او هر څنګه چې ارتقائي وبلل شي او ډېر هم په غیر شعوري ډول په ارتجاعي بدلیږي ځکه کله چې څوك په خپل فکر باندې قدم نه اخلي نو بیا راځي خپل جریانات چې ئې وکومې خوا ته وړي خو دي د هغو په مقابل کې باید

حرکته پاتې نه شي. لېکن که له افکارو سره تطبیقي حرکت شروع وي نو ضرور سړي د خطا ابستو نکو تجربات نو له غفلته راوزي او ژوند په پوره روښن بیني سره بالالای شي چې دغه شي ژوند او د انسان دپاره د حقیقي او مترقي ژوند حیثیت لري.

لکه څرنګه چې په انساني ژوند کې فکر ضروري دی او د فکر دپاره صحت ضروري دی دغرنګه دوه واره تطبیقي فعالیت ضروري دی او یوازې له دغه لاري څخه سړی د طبیعت سره د واقعیت پر اساس داسې شناخته کېږي لکه څنګه چې د طبیعت احساس کوي هغسې ئې خیال کوي نه داسې لکه څنګه چې خیال کوي هغسې ئې احساس کوي.

ژباړونکی [ح]

# د لویانو وینا وې

د ګړو نتیجه:-

نه یوازې په هوا کې، نه د دریاب په تل کې، نه دغرو په ناس کې او نه د عالم د اجزاؤ څخه په یوه جز کې داسې ځای سته چې انسان دې په هغه ځای کې د خپلو ګړو له نتیجو څخه خپل ګریوان خلاص کړي.

«بودا»

ښه کړه :-

ستاسې د فیصلو هره نمره لکه ستوري داسې دي چې ور کېږي خو رڼا ئې اوس لا هم په خپله نجومي لار کې حرکت کوي او لار وهي! دغه ډول ستاسې د ښو کړو رڼا خپله لار وهي حال دا چې ستاسې کړه او عمل ډېر وخت کېږي چې سرته رسېدلي دي. نو هر څومره چې ستاسې ښه کړه هېر او ورك شي رڼا به ئې تل تر تله ځلېدونکې وي. «اېچه»

ښه میراث:-

ډېر ښه شی چې پلرونه ئې خپلو زامنو ته په میراث پرېږدي ښه تربیت او روزنه ده. «سېسرون»

«نور په ۱۰ مخ کې»



همایونی معظم اعلیحضرت دفیل کوه دبرېښناد دستگاه دکتلو او پرانستلو
په وخت کې دبرېښنادلوی شرکت د رئیس ښاغلي فرهاد تشریحات اوري .

## نومیالي پوهان

ښاغلی رحمت الله [کرزی]

# ګـــالیله

## او د هغه لنډه پېژندګلوي

علماء، پوهان، نوابغ او نور ستر اشخاص هغه چې د بشر ټولنې ته ئې خدمت کړی دی پوازې خپل د زېږېدو ځای ته نشي منسوب کېدلای بلکه د مځکې د مخ ټولو اولسونو ته ئې خپل مال بللای سی ځکه چې د دوی د پوهنې او خدمت رڼا د نړۍ هر ګوټ ته رسېدلې ده، د دوی بین المللي حیثیت هم په دې وجه دی چې د مځکې د مخ ټوله او سېدونکي ځني مستفید او بهره ور دي.

که هر ز د بشر د تمدن روښانه تاریخ ته غور وکړو او څه نه څه د خپل فکر رڼا پر و اچوو نو دا به هرو ز ته ښه ثابته شي چې دا ټول لمر په شان ځلېدونکي کنده او د شان ځلېږي چې په نړۍ کې دا ټوله اختراعات او اکتشافات چې په ستر ګو ئې وینو یا ګټه ځني اخلو صرف د یوې ورځې یا څو ورځو د زحمتو او تکالیفو ثمره نه ده بلکه د بشر د زرګونو کلونو د کوښښ او زحمت نتیجه ده چې د ن ورځې د مدنیت او ترقۍ اساس ئې ایښی دی پدې سلسله کې به سوونو او زرونو انسانانو د بشر د ښېګڼې او آرامۍ د پاره و تکالیفو او زحمتونه اوږه ور کړې شپه او ورځ ئې پر ځان یوه کړې او کارئې کړی دی، پدې کار او بلهٔنو کې ئې حتی قربانۍ ور کړې دی څو دادې چې نن ورځ د مځکې د سر ټوله انسانان حتی حیوانان هم برخه ځني اخلي که د دوی زحمت او کوښښ نه وای نو طبعاً به د نن ورځې دا تمدن او ترقي او دا سر پر سر مزیتونه هم نه وای دا چې د پوهانو او علماؤ اختراعاتو او اکتشافاتو د پوه ښاڅونو د سر مخامخ کړی او ټوله نړۍ وال ئې مستفید ګرزولي دي دوی هم پر انسانانو ګران او هرڅوک ئې په وجود ویاړی.

ددې جملې څخه یو هم د ایټالیې مشهور او نامتو فزیک پوهاند او لوی عالم [ګالیله] دی چې زما ددې لیکنې عنوان ئې تشکیل کړی دی دا د بشر ستر خدمتګار په ۱۵٦٤ میلادي کال په ایټالیه کې پیدا سوی دی، دا هغه وخت دی چې د ټولې اروپا مخ د ناپوهۍ تورو اوریځو نیولی ؤ.

په ګالیله کې په ډېرو کتروبلا د یوه پوره استعداد او ښه لیاقت نخښې ښکاره وې نو پس له هغه چې تحصیل ئې بشپړ کېدو نه ور سېدی د ځینو اختراعاتو

او اکتشافاتو رخوانه ئې مخ وروګرزاوه چې بدې لار کې ئې اوچت قدم واخیست .

### د ګالیله د اختراعاتو څخه

تلسکوب دی چې په همدې خپله اختراع سره ئې د لمر په باره کې ځینې معلومات و لاس ته راوړل او هم دغه رنګه ئې د نورو ستورو حالات و ځانته معلوم اود [کوپرنیك] قانون ئې پای ته ورساوه او دائې هم د اومړی ځل دپاره اظهار کړه چې ځمکه ګرځیده او حرکت کوی ، کله چې خلکو به زیاته بیا [پاپانو] ددو دا خبره واروېدله ډېر وخروښیدله اودی ئې بې کفر سره ملزم کړ ځکه چې پدغه وخت کې سیاسی او مذهبی اقتدار د پاپانو پهلاس کې ؤ اودوی هیڅ کله د داسې نظریاتو غږېدنه نه کول . ځکه د داسې خلګو ظهور او د داسې نظریاتو خپرېدلو او منځ ته راتللو به وجه ددوی مال، عزت اوجاه ؤ جلال ته صدمه رسېدل نو دا کار چې ددوی پهضرر تمامېدی په بوه اوی مخالفت ئې لاس پوری کړ او د بشر پردې نابغه

باندې ئې په ۱۶۳۳ میلادی کال دا حکم وکی چې دی بو اوی مجرم دی او خلګ ، ګمراهان کوی کله چې ګالیله وخپل ځان ته دا عذاب متوجه وایدی ددې دپاره چې مراد ځنی پاته نشی ظاهراً ئې توبه وکښله او ځان ئې آزاد کړ مګر خپل فکر ودې ته پرې نښاوه چې دغسې پسې پاته شی او خپلې خبرې ته ئې دوام شروع کړ چې دادی نظریه ئې پسې تائید سوه .

# «د لویانو وینا وې»

اخلاق :-

اخلاق د نړی د لویو محرکه قواؤ څخه دی اود خپلو نظارانو په کمال کې انسانی طبیعت په خپل ډېر لوړ اوعالی شکل کې مجسم کوی .

«اسمایلز»

خطرناکې کلمې :-

بیخی بدې او خورا خطرناکې کلمې دادی : «تول دغه دول دی » . «تولستوی»

پښه اوسه :-

داسې و اوسه او ځان داسې کړه چې د هر چا نه و یلای سی : «لکه زه، ځان داسې کړه » . «کانت»

پښه خوری :-

هغه څوك چې پښه خوی لری هیڅ کله بوازې نه پاته کېږی ځکه تل ځان ته دوستان او ملګری پیدا کوی .

«کنفوسیوس»

ضعیف موجود :-

که انسان خپل ځان تر هغه مقام چې پکښې کی دی اوړ نه کړای سی بوضعیف موجود دی . «دانیل»

د اخلاقو خاوندان :-

د اخلاقو څښتنان د خپلې ټولنې روح دی . «امرسون»

اخلاق :-

اخلاق د علم، مال، مقام ښکلا او نورو مزایاؤ ځای نیولای سی خو هیڅ نعمت د اخلاقو پر ځای نسی درېدلای .

زماغو ښتنه :-

زه تل غواړم چې د شریفو او نجیبو خلکو پېژنی و کړم او له دوی څخه بوشی زده کړم «شکسپیر»

ښاغلی محمد حسن «ساپی»

# د مادي اصالت او د معنی اصالت

## ماتریالیزم او ایدیالیزم

تفکر او تجسس د بشر فطري خاصه او ذاتي ملکه او د هغه طبیعي استعداد دی له همدې کبله هر کله په هغه شه کې فکر کوي چې تېرېږي بوهېږي او هغه څه لټوي چې له سترګو نه پټ او د اشیاو او پېښو په بواطنو کې اېدلو هم قناعت نه کوي بلکه غواړي چې د هغو په ماهیت او حقیقت هم پوه شي.

نو د بشر دغې فطري غریزې یعنی د اشیاو او پېښو د حقیقت او ماهیت استدراك د فلسفې موضوع او غایه منځ ته راوسته.

څرنګه چې حقیقت تر اوسه پوښان نه بلکه هرڅه ته د هغه د تفکر او ذهنیت په اندازه برېښي نو له همدې کبله بشر د یوې پېښې او یا د یوه شي د حقیقت او ماهیت په باره کې بېلا بېلې مختلفې نظرې ښکاره کړې دي چې د حقیقت په باره کې دراېو او نظریاتو اختلاف او تر ډېره د فلسفې د تعدد او اختلاف موجب شوی دی د یوې اوږدې تاریخي زمانې په ترځ کې ډېر او رازراز فلسفي مکتبونه منځ ته راغلي او هر مکتب په سلګونو مربیان او ښوونکي او په زرګونو شاګردان او پیروان ارلې او روزلي دي مګر په عمومي او کلي ډول فلسفه او فلسفي نظریات پر دوو لویو مکتبونو چې په عین حال کې یو د بل ضد او نقیض هم دي وېشل کېږي چې دغه دې متباینې او مخالفې فلسفې عبارت دي له ایدیالیزم او ماتریالیزم څخه.

زه غواړم چې په دغه لنډه مقاله کې د دغو دوو مختلفو فلسفي مکتبونو مبادي او د دوی تر منځ اساسي اختلافات بیان کړم چې خپل د ډېر لږ تماثل هم د دغو فلسفو نه یوې خوا ته د لته ښکاره کړم د هغو ښاغلو او ستونکو د پاره چې له دغې موضوعاتو سره علاقه لري ولیکم او بیا به ورډې او مري ایدیالیزم تر بحث او څېړنې لاندې نیسم:-

ایدیالیزم (معنوي فلسفه، خیال پرستي) ایدیالیزم ؤ ریالیزم (واقع پرستي) او ماتریالیزم (ماده پرستي) په مقابل کې واقع دی وائي چې: د بشري استعداد او د تکامل د قانون په اقتضا ایدیالیزم وروسته له ماتریالیزم څخه منځ ته راغلی دی.

هغه محور چې د ایدیالیزم دنیا پرې څرخي روح او هغه ناداو چې د دغې فلسفې ماڼۍ پر بنا ده روحانیت دی.

هغه چا چې د ایدیالیزم دنیا په

برهان او دلائلو توده او رنګینه کړه او بدعه لرې کې ئې مدلله بحثونه وکړل افلاطون، سن-اګوستین، ټوماس مور، ډیکارت لایب نتسن، کشیش کالوین، دوکتور رابو بورت، مور، بسن میترلینګ او داسې نور نو.

کشیش کالوین وائي: چې ماده نشته هر څه چې شته هغه عقل او روح دی کوم چې موږ ئې ماده بولو هغه زموږ عندي او نسبي تصور دی یو څه شی چې موږ د هغه په شاوخوا کې فکر کړو نو هم هغه ساعت کې پیدا کېږي او که موږ یو څه شی خپل خیال او فکر ته رانه وړو نو هغه شی نشته په ساده عبارت دی وائي چې نه ځمکه شته او نه آسمان نه ستوري شته او نه لمر او نه سپوږمۍ نه اوبه شته او نه خاوره.

هغه ګرده چې موږ ته شته ښکاري هغه روح او مجرد عقل دی او بس.

لایب نیتس عقیده لري چې د هر شي اساس او بنیاد روح دی چې دغه روح په ډېرو ذراتو چې شمېر ئې نه راځي وېشل شوی او ټوله دنیا او ټول کائنات له دغو روحي ذراتو څخه جوړه ده او هر شی چې وینو هم دغه روحي ذرات دي.

ایډیالیزم ادعا کوي چې ماده احساس او حرکت نشي کولی او فکر له مغز څخه چې یوه تینګه او تاریکه ماده ده نه زېږي او هغه قدرت چې د هغه په ذریعه د اشیاو او پېښو د حقیقت او ماهیت ادراک کړو هغه مجرد عقل دی چې له مغز سره هیڅ تعلق نه لري بلکه یوه روحي قوه ده.

او وائي چې عقل په خپل ذات او بېخپله اراده د شیانو او پېښو ادراک کړي او په دغه لیاره کې له خدایه څخه مرسته غواړي او خدای هم د شیانو څېرې او شکلونه د انسان په عقل کې ترسیموي او موږ مجازاً هغه رسمونه او صورتونه حقیقي شیان ګڼو.

ایډیالېزم عقیده لري هغه څه چې په کائناتو او یا په بشري ټولنه کې پېښېږي هغه ټول مستقل او یو له بل سره ئې یو ارتباط نه لري یعنې هیڅ علت معلول او هیڅ معلول علت نه لري د شعور په باره کې وائي: چې شعور یو ازلي او ابدي او مستقل شی دی او مادي عالم او بشري پېښې د هغه انعکاس دی که شعور نه وي نو مادي عالم او طبیعت هم نشته او زیاتوي چې بشر بېخپله اراده کې آزاد او مختیر دی هغه څه چې کوي هغه د ده له خوا بېله دې چې کوم مجبوریت احساس کړي په مستقل ډول سره کېږي یو ایډیالیسټ د دیالکتیک ماتریالیزم په خلاف د یوه شي او یا د یوې پېښې د حقیقت او ماهیت د معلومولو په منظور یوازې د هغه شي او یا د هغې پېښې په مطالعه او تحقیق اکتفا کوي بېله دې چې د هغو علت العلل او ماحول ته مراجعه وکړي ایډیالیزم د طبیعي عالم په حرکت او نشو نما او تکامل باندې هم عقیده نه لري او وائي چې طبیعت او هستي نه خوځېږي نه تغیر کوي او نه تکامل مومي هغه څه چې موږ ئې تغییر حرکت او تکامل ګڼو هغه زموږ یوازې خیال او تصور دی او فرضاً که طبیعي عالم حرکت هم ولري نو دائروي به وي یعنې چې له یوه ټکي څخه د هغه حرکت شروع کېږي او بېرته بېر هغه ټکي ته راګرزي او که تغییر هم پېښ شي نو به کیفیت کې به وي نه په کمیت کې ځکه چې د کمیت له تغییر

او بدلون څخه هیڅ نه ژغوري او بوه طبیعي او یا بشري پېښه هر هغه وخت تکامل مومي چې هغوی پخپل منځ کې کوم تضاد ونه لري او ګرده ماحول او محیط ورسره متفق وي.

ایدیالېزم ادعا کوي چې د اشیاؤ د ماهیت او حقیقت ادراک د بشر له قدرت او توان څخه لېري دی او انسان نشي کولای چې پخپل نیمګړي عقل او شعور د اشیاو او پېښو په حقیقت او ماهیت پوه شي او په دغه لړ کې د بشر معلومات نسبي او اعتباري دي.

ایدیالېزم د روح ابدیت او نورو هغو پېښو ته چې په خارق العاده ډول او یا د یوې معجزې په څېر واقع کېږي عقیده لري او په همدې ډول سحر او جادو هم له امکان څخه وتلي مسئلې نه ګڼي.

او بوڅه شی چې د بشر د خیر او نجات او د دنیا او آخرت د نېکمرغۍ موجب او وسیله ګڼي هغه مذهب او نېک اخلاق دي.

د ایدیالېزم د دغو پرنسیپونو په اساس یو ایدیالسټ پخپل ژوند کې زیار باسي چې دنیا او د دنیا اوضاع له خپلو خیالاتو او تصوراتو سره برابره کړي او دنیا ته د خپل خیال او تصور په عینکو کې وګوري او دغه او په دنیا پخپل ځای کې وپلټي او مطالعه ئې کړي نه دا چې وغواړي چې دنیا دې د ده په مرام وڅرخي.

داؤ د ایدیالېزم (خیال پرستۍ) اساسي او اصلي پرنسیپونه چې ډېر مختصر او د اوټلاین په صورت ذکر شول او په همدغه ځای کې د ایدیالېزم بحث ته خاتمه ورکوم او ماتریالېزم چې د دغې فلسفې په مقابل کې واقع دی تر بحث لاندې نیسم.

ماتریالېزم (مادیت او مادي فلسفه) لکه څرنګه چې د مخه مو ووېل ماتریالېزم په تمامه معنی د ایدیالېزم په مقابل کې واقع ده کوم محور چې د ماتریالېزم دنیا پرې څرخي هغه ماده او طبیعت دی.

دغه فلسفه په علمي او تجربوي دلائلو او شواهدو ادعا کوي چې ماده پخپل ذات یو عیني او واقعي حقیقت دی.

روح له مادې څخه زېږي لومړی ماده او بیا روح دی او هغه څه چې په متافزیک پورې اړه لري هغه یو هیڅ تصور او مطلق وهم او خیال دی.

هرڅه چې دی همدغه طبیعت دی د ماتریالېزم مکتب یو لرغونی تاریخ لري زللر د یوناني فلسفې یو معاصر محقق او پوهاند وائي: چې د لرغوني یونان ایاسو څخه ونیسه فیلسوفان او عالمان ماتریالسټ ؤ لکه طالیس، دیموکریت، ازیمون او اپیکور.

هغه وخت چې مسیحیت منځ ته راغی د دغه مکتب ابرشاته هېر کړی شو خو بیا ئې د رنسانس د دورې په آخر کې رواق وموند په ۱۸ پېړۍ کې چې په فرانسه کې د عقیدې آزادي پیدا شوه د دغه مکتب بازار بیا تود شو او په ۱۹ پېړۍ کې چې ساینس زیات پرمخ ولاړ طبیعت او طبیعي عوارض علماً او په تجربه سره تفسیر او تعبیر کړه شول نو د دغې فلسفې د انکشاف او نمو دپاره ښه زمینه مساعده شوه تر څو چې نن زیاتره بیولوجستان او روحیات پوهاندونکي ماتریالیست دي په نوي پېړۍ کې هغو پوهاندو چې ماتریالېزم ته رنګ او رواق ورکړ او بیا په دغه لړ کې نقه ار علمي کتابونه ولیکل او دغه مکتب ته ئې خاصتاً یو

علمي رنګ ورکړ هغه توماس-هابس، کارل مارکس، انګلس مارك تو آئين، لينن او داسې نور دي.

ماتریالیزم لومړی د روح او فکر په باره کی وائي: چی روح د مادی خاصیت او فکر د مغز چی یوه تاریکه او غلیظه ماده ده، زیږنده ده، او تفکر له مادي څخه نشو جلا کولی.

کارل مارکس د دیالکتیك ماتریالیزم د ایدیالیزم په خلاف ادعا کوی چی طبیعت د کائناتو یوه تصادفی مجموعه نه ده، او هیڅ شی په کائناتو کی په مستقل ډول نشته او ټول کائنات یو په بل پسې د ځنځیر د حلقو په څیر سره تړلي او مربوط دي که څوك غواړی چی د یوه شی په حقیقت پوه شی نو هغه شی دی یوازی په مستقل او جلا ډول نه مطالعه کوی بلکه د هغه شی فعل او انفعالات، محیط او ماحول اضداد او نور هغه شیان چی ورسره اړیکی لری هم دی تر مطالعې او څېړنې لاندی ونیسی.

د یالکتیك ماتریالیزم وائي: چی طبیعت لکه څرنګه چی ایدیالستان فکر کوی ساکن او بې حرکته نه دی بلکه حرکت او تغییر کوی او مخ پر وړاندې ځی تکامل کوی له منځه ځی، زیږیږی او زیاتوب پیدا کوی ولی چی تکامل د کمیت د برله پسې مگر سست او مداوم تغییر بدلون دی په یو ناڅاپی کیفیت سره.

او د تکامل دوران داسې ندی چی له یوه ټکی څخه شروع شی او بیرته هم هغه ټکی ته راشی بلکه د تکامل سیر او دوران مخ پر وړاندې او ارتقائی دی د زوړ کیفیت بدلون په نوی کیفیت سره؛ یعنی له ساده څخه مرکب ته او له ادنی څخه اعلی ته ماتریالیزم د یالکتیك عقیده لری چی په طبیعت کی هر شی او هره پېښه پخپل منځ کی اضداد او تناقضات لری او ټول یوه منفی او یوه مثبته خوا یو ماضی او یو مستقبل لری او پخپل منځ کی داسې عناصر لری چی ځینی ئې مخ پر فنا او نابودۍ دی ځینې ئې د ترقی تکامل په حال کی ایدل کېږی د دغو اضدادو او تناقضاتو ترمنځ جګړه د نوی او زوړ ترمنځ جګړه او د هغو چی مری او فنا کېږی او د هغو چی نوی پیدا کېږی د دوی ترمنځ جګړه دغه ټولی جګړې او شخړې د تکامل پایه او اساس تشکیل کېږی.

ماتریالیزم وائي چی دنیا لکه څنګه چی ایدیالستان تصور کوی د مطلق عقل مظهر او زیږیدنه نه ده بلکه دنیا پخپله ذات کی ماده او د مادې راز راز پېښې او مختلف صورتونه دی.

هراکلیتوس د یونان ارغونی پوهاند وائي: چی عالم د هیڅ خدای یا د هیڅ بشر له خوا نه دی خلق شوی او وائي چی اصل د مادي محصول او نتیجه ده یعنی فکر د مغز محصول او مغز د فکر غړی دی.

انګلیس وائي: حقیقت یوازی په همدې مادی جهان کی دی چی په پنځو ظاهری حواسو سره درك کېږی او عقل او شعور د یوې مادی عضوی زیږیدنه ده چی هغه مغز دی او ماده د عقل مخلوق نه دی بلکه بر عکس عقل د مادي مخلوق دی.

په همدې ډول ماتریالیزم د ایدیالیزم په خلاف ادعا کوی چی د شیانو ذات او حقیقت کاملاً پېژندل کېږی او د کوم شیانو حقیقت او ماهیت چی لا تر اوسه ندی ښکاره شوی

ښاغلی عبدالحی «حبیبی»

# لویه ګټه

د بهاندي سیند پــه منځ كې — هـا ایدله لـــو یه ګټه
ښه بزه پــه مقامات وه — له آفته نــه وه بچه

ناو خوا ئې سېل روان ؤ
ډېـر په قهر خـروښان ؤ

وې څپې د سېل روانـې — خـړې غور ځندې غـراني
بردې ګټې ئې هجوم كړ — بیا به شولې سره ورانې

ټینګ بېكار ؤ سخت ئې جنګ ؤ
بردې ګټه ئې غورځنګ ؤ

ګـټه وه ټیـنګه ولاړه — ښه مټینه هـم سنګینه
نه ئې اره وه نـه ئې پېره — ئې پروا لـه دې نـاورینه

څنګ ئې ؤ ور كړي سېل ته
غوږ ئې اېښی قال و قیل ته

سېل كولې ډېـرې غورې — لواړې هم تـرخې خبرې
غربـدلی خـروښان ؤ — وې حملې ئې لـړې برې

---

وروسته به د سیانس له بركته ښكاره شي.

ماتریالېزم وائي: چې په تاریخ كې هیڅ یوه پېښه ناڅاپه او اتفاقي صورت نه لري او ټولې پېښې د علیت په قانون پورې چې هغه د تاریخ جبر بولي تړلې دي. او ځكه باید په تېره بیا په اجتماعي علومو كې د تصادف او اتفاق موضوع باید لرې كړه شي ځكه چې عالم او جامعه پخپل تكامل او ارتقا كې د جبر تر قانون لاندې دي او د یوې ذرې قدر د اختیار ځای نه پكښې لري او باید په جرأت سره ادعا كوي چې د اجتماعي او سیاسي نظامونو اصلي او اساسي عامل آراء او عقاید یعنې روحي عوامل نه دي بلكه منحصراً اقتصادي ضروریات دي چې د تمدن په ټولو مظاهرو كې حتی په آراؤ، معتقداتو ادبیاتو، اخلاق او روحیاتو كې اثر او نفوذ لري.

ځکه به خواله ؤ پوښېدلی
غوړځېدلی خـرو ښېدلی

شپېږه وروسته هغه ولاړه — له جوششه سیند آرام شو
څو چې ښوریدی ژوندی ؤ — دا آرام ئې هم انجام شو

به غورځنګ کې ئې حیات ؤ
وسیله ئـې د نجـات ؤ

چې د سیند څپې سوې کښېنته — کـتـه هغه وه ولاړه
په خندا خندا ئې ووې: — (ژوند به هسې ځای کې غواړه)

دا چې سېل کړه به غورځنګ ؤ
زما د ژوند بشپړ بـدنګ ؤ

پـه زرو زرو کـلونـه — دامې ځای دامې مسکن دی
که سېل راسی که طوفان سی — زړه مې هیڅ نه به امن دی

ځکه دا زمـا منفعت دی
استحکام مې د بنیت دی

په هر کال چې سېل بهاند سی — ریګ او خټې راوړی ما له
زه هم هغه ځانله جذب کړم — ګټه اخلم لـه دې حـاله

زما بدن پـه قـوی کیږی
سېل چې هر څو ئی بهیږی

دی که هر څو هیاهو کړی — زه د ژوند نوښه تری مومم
له څپو مې پـروا نسی — د حیات جـوهر ئې شومم

د ژوندون مې ده دا ګټه
پـه کـلـکه او به ګـټه

## رباعی

سکندر که تر ښېور بې مسکون و کینې — څڼارمان ئې به نابو ده ژوندون و کینې
ښه ارم و ګټې که نه غواړی چې مړه شی — ارسطو ئې برمزار دا مضمون و کینې

«رشاد»

ښاغلی عبدالشکور رشاد

# د پېغور حسرت

چې لښکرو د جسرت «۱» راوی ناتار
ډېری مېنډې سره بورې کړې برېدونو
ډېری ناوې «۲» سره کونډې کړې برېو
ډېرو غشیو سره پېودل زړونه زغری
ډېری توری سره پښې شوې برېښو
ډېر سرونه د ځلمو په ډانګو نجتی
ډېر سرونه لغړېدل په وینو لژند
ډېر درونه وو تر سوو لاندې مات شوي
ډېری هیلې نیمه خوا کړلې غښتلو
په اولجه کړې ئې بندې بونې جسرت نه
پر ګهکر تېر د سوبې لمر راوخوت
پر بالو به په نخوت وړاندې کولې
ورشېدول به فیروز خان جسرت ګهکر ته
په ئې ترخ کړې ئې بو سر راوی دربار ته
سرئې مه بوله د سرو ګلو ګېډۍ وه
له ښکلا خندوي مېندې باندې خوندی
نازېدلې په وصال د جنت ښکلې
ښاپېرو به ئې بلا بلل خپل اور ته
په کتو ئې بانه غشی شول د زړونو
پرځوانی باندې ئې نوی کړې مغواو ښکی

پښتانه ځلمی ئې کړله تار په تار
ډېری خوندی سره وراری کړې تېنګار
ډېری نجونی یتیماني کړې ایثار
ډېرو نورو سره سکښتل سرو سپار
ډېر سرونه وو پسرانه انبار انبار
ډېر سرونه د مېړو د فتراك بار
ډېر نخوت نه تر بېدل پرهار پرهار
ډېر لېچونه وو تر پښو لاندې افګار
ډېر ډاګونه ئې په وینو کړل ګلنار
فیروز خان د پښتنو اودی سردار
ښاد ناموئې پر سر واخیستی دربار
کسکریه د توهیالیو وار په وار
د هر تومړو کهول و ملك و تبار
چې «فیروز» ئې له ناسه وکا انکار
نامرادیه ئې ژړول یارو اغیار
له پرتمه ئې زمریو کاوه دار
پرښتو ئې په نپاك خمار له لار
ښایستو به ئې پر زړو اخیست ګذار
په لیدو ئې د ښتو ووالیه ځار ځار
چې ئې وینو وته نېزی وو بار بار

---

«۱» جسرته د پنجاب په شمالي برخو کې د ګهکر قام مشر و، په ۸۴۳ ه‌ق کال ئې د ډیلي د پاچا سلطان محمد شاه په حکم د سر هند پر پښتنو برید و کړ.
«۲» ناوېی [ناوېاني].

په کلو چې ئې مرکې وته سترګې ړوو
هغه خولې ئې په ننګ مقابله سر شوې
ډېرو ډېرو ئې پر تورو آفرین کړ
ډېرو ډېرو ئې قصې د تینګارو کړې
ها له دوې په هسې فیروز ښاغلی
دا زما د لمر نور د کوګل سترن وه
دا زما د ګورت نوبرې' دمو نې تېغ ؤ
دا زما دبېزې ساه ' د ښکارګ وینه
دا زما د کهاله هالګه د ګورخو ند ؤ
دازما دلاس امسا ' د امید څانګه
په حیرت ورته ځیرت ورې فیروزه !
سترګې د کښو د فیروز له ډېره غرېږه
وې ئې موز هیڅکله نه شمېرو په ځان کې
څوک چې ژغورې پر ناموس ځړې له توری
څوک چې تمه په پرېږدی د سیالو سیاله
څوک چې نه پېړی جنت په اېه وینه
څرک چې نه نړی د کفر مخ په مړنو
څرک چې پرېږدی و د ښمنو ته میدانونه
ماتې نوم پرېږ به نه واخیستې څکه
هسې نه چې «شاهین» «۱» مړوی په سپېرتانه

شول هغه غلیم لپمه پسې خسو نبار
چې ئې وازی په ښرادې هر سهار
ډېرو ډېرو شاباسې کړه پرې نثار
غلیمان ئې پر مېړانه شول اقرار
چې دا راز به اوس په فخر کړم اظهار
دغلیم د زړه نشتر ' د سترګو خار
د غلیم د ښو ځنځیر ' د غاړې مار
دا زما د کوګل زړه ' د زړه قرار
دا زما د باغ مېوه د بڼ بهار
دا زما د ژوند حاصل دمرګ یادګار
نا لومړی ولې د نه ښېرو دا نامدار
نر لمو ئې ورته وغورځېد شرار
څرک چې مخ پر تندی نه واخلې ګذار
څرک چې نه اخلي پر زړه دننګې وار
څرک چې هیله په بلورې د بن په دیدار
څرک چې نه ښندې پوسر د خدای پر یار
څوک چې نه سی د اسلام نر ننګه چار
څوک چې نوغې پر نامه زدی د فرار
هسې نه چې ورځه شوې وی ادبار
خدا ومه کا چې راباته نشی عار

دزرو نامرانو زړیو داغ «چرته» !
په حسرت دیپغور نه ارزی د پلار

«۱» شاهین خان د فیروز خان د زوی نوم ؤ.

مرحوم عبدالله
د سپین بولدک

# د خپل وطن دښت ؤ غر

د وطن زوزمی تر بل ګلستان خوښ دی
تر بر دیه ماڼیه می غر دافغان خوښ دی



ځان ؤ بهګ می د بل ځای څه په کار نه دی
زما د خپل وطن شپانه او کوروان خوښ دی

مدام بروت وی به کیږدیه کی میږی پیانې
تر کشمیر ئې خپل وطن او دامان خوښ دی

د بونی بر سر مدام بې غمه ګرزی
د بل چا تر بنګلو ئې بیبان خوښ دی

د بردی وطن سری که د هر عالم وی
زما د خپل وطن سپین ږیری ؤ ځوان خوښ دی

دښت ؤ غر د خپل وطن راته ګلزار دی
د شپلی ګوالمی تر باغ د خاقان خوښ دی

عبدالله هم زما کور دی په سرحد کی
خپل وطن می تر دا ټوله جهانه خوښ دی

---

# څلوریځه

ګلرخان دروهی سبا مېلې ته
باباولی ته ، څموک سریوزي ته
حیران پرلاری زه شمس الدین هم
چی پورته دروم که مخ و کنبې ته
د شمس الدین کاکړ

تاریخي :

د ښاغلي [غروال]
ژباړه

# د بشري فکر لومړني آثار

د تخیل مزغلا چې له تاریکو ځنګلو څخه وزي او لومړني قبائل پرېږدي او د مصر بناو په مرموزو معابدو کې ګام ایږدي او د شرق له ځلانده تمدن سره آشنا کېږي .

د پر کلونه مخ کې تر هغو چې مصري حماسه وبو نکې د دریم توت مس یا دوهم رامسس د لوی فرعون پلار د دوی دربارته راشي او خپل په زړه وړو ویکو ترانو سره خپل تولواکان چې د «لمر زامن» او د «بهیم تاج» ئې بلل، وستائي په مصر کې د پر هنرمندان او لیکوونکي وه .

د «ممبیت» د دوري او دریمې شلرمې، پنځمې شاهي کورنې د پر آثار د «هیرو ګلیف» لیك یعنې مقدس خط د هغو څخه پاته شوي دي چې د هغو وختو موهومات، خرافات، مذهبي مراسم فلسفه او ادبیات ومونږ ته راښئي نو داهغه آثار دي چې د آینده وختو او نسلو ته د فرعوني عصر د ژوند خصوصي او عمومي جزئیات ورښکاره کـوي د لومړنیو دورو د شلرمې شاهي کورانې بو مشر چې کله د ژوند ومیڅي ته رسېدلی او په ابدي خوب د جیوني په قبر کې پرېوتی لـه خپلو خپلوانو څخه ئې وغوښتل چې د قبر پر تیږه ئې داسي لقب وکیښدل سي چې پسله مرګه هم د ده نوم په لوړ وی دا لقب په دې ډول و چې : « په قبر کې پروت سړی د کتابخانې رئیس دی » له دې څخه اوس مونږ پورت ور ورلیسو چې په هغه وخت کې کتاب، ادبیات او فلسفې هم وجـود درلود او کتابخانه دومره محترم شی وه چې د شاهي خاندان بو مشر هم ددې د ساتلو او ریاست په لقب پسله مرګه افتخار کاوه .

ددې کتابونو لویه برخه چې لهمنځه تللي ده بې ګمانه وېل کېدای شي چې دا به د «منی» پاچا چې ممفیس د ښار جوړوونکی ؤ لا د پر ترمخه وه د هغو ور کو کتابونو څخه د مړو کتاب یو مقدس کتاب ؤ او نور تاریخي شعري کتابونه چې د پاچهانو په ستاینه کې ویل شوي وه او د هغه وخت د پاچهانو اخلاق او روش ښه ځنې ښکارېده او یو شمېر رسالې چې د هغه وخت ظاهري او بـاطني علوم ئې ښوول له منځه تللي دي .

د مصر پـه نو مقدس کتابونه چینائي مقدس کتاب د «کینګ» او د آریاپانو ترلرغونو مقدسو کتابو ودا او اوستا څخه د پر قدیـم دي .

د مـصر د شمـال او جنوب لومړني نژادونه ورو کی اسیا د سیمین پرستانو له ښاخلي څخه ره، کومه ملکه چې د روم بحیرې او تـوري بحیرې او د ققاز د غرو او خزر بحیرې په منځ کې واقع شوې ده پخوا ډول، ډول نژادونه پر هغه

اوسېدل ددي قومو څخه یوه برخه د بلرو اونیکه ګانو به مځکه ئي زده ترلوڅ پر هغه اوسېدل او بله ډېره برخه یې دي بلتینه راونلي ؤ چي د آسیا تر شمالي برخو دېته اوبو اوهوا مځکه ځانته پیدا کړي اومخ پر کښته راغله اود کلدي اوي ملك ددي قوم ځای شو .

آکدیان د همدي صحرا ګرزېدونکو قبایلو څخه یو قوم ؤ چي کله به مستقل ملت ؤ او پر یوه ځای به اوسېدل او کله به ئي د صحرا ګرزېدو یعني دیوه ځای څخه بل ځای ته هجرت ژوند اختیار اوه .

آکدیانو نه د خبرو او لهجي او نه د مذهبي معتقداتو له نظره دهغه وخت دیوه ملت سره هم یو شانګی نه درلوده .

آکدیان اوسومریان د تمدن څخه پر لیري وه څو کله چي ددجلي و شاوخوا ته ورسېدل قانون خط اودین ئي وپېژاند وروسته دي اندازي ته ورسېدل چي هیڅ ملك له دوی سره برابري نسوای کولای ښاروته ئي جوړول د اوسپني څخه ئي آلات تیارول اود ونیو ناوول د مجسمو جوړول د دوی په زده وه .

دتمثیل یوهنی لوی کمال دادی چي اوس موږ کولای سوای چي دهغه وخت لیکونه ووائی د «آثار اود» لیکل شوی دبرلیك چي په «سارز» کي کشف شو اواوس «لوور» په موزیم کي پروت دی علاوه پردي چي د هغه وخت د یوه مشر چهره پر کینډل شوی د هغه وخت الفبا هم پر لیکلې چي ٤ یاه زره کاله دمخه د «اور» او «سیربولا» اوسېدونکی دیو بل یوهېدلو لپاره استعمالوله اودوی به دا دول دبری دقبرو په شاوخوا کی ایښودلې .

تقریباً د ۴۵۰۰ کاله څخه تر ۲۰۰۰ کاله تر میلاد دمخه آکدیان اوسومریان ددجلي په شاوخوا کي مستقلا اوسېدل څو آخر د سامي قوم په زور له یښو واچول سوه او یو مخیزه محوه شوه .

دي قوم خپل دځای کښېنستلو خلکو یعنی آثوریانو او فنیقیانو یا یهودیانو لپاره یوه میراث کي خپل د خبرو مدنیت ډېر شیان پرېښول یهودیان چي پسله همدي درو قومونو څخه ومیدانته راغله دهرجهت څخه ددوی د تمدن مرهون ؤ .

دشعر دولونه چي را وروسته دوی د تورات ته منسوبول او افتخار به ئي پر کاوه تر څو رنګه چي اوس تحقیقات کېږي داتوله د آکدیانو د ابتکاراتو څخه بلل کېږي په زبور کی چي داؤد پیغمبر علیه السلام منسوب دی د آکدیانو دوخت د پردمتورونه برانه دی .

دلویانو خبری:

## اخلاقي فضيلت

هغه څوك چي د قوی عزم او متینو اخلاقو درلودونکی وی هیڅکله خپل اخلاقي فضیلت د ژوند تر هوسونو نه فدا کوی، هوا یه دي ټینګه کی هغو مېړونو ژوند کړی دی چي دخپلو اخلاقي فضیلتو دتکمیل اوساتني دپاره ئي خپل جسم او روح قربان کړی دی .

«کنفوشیوس»

### د اخلاقو تغیر

دټینګ عزم او ارادي درلودونکی هم دخپلو اخلاقو له تغیر څخه عاجزه دی . «....»

د دنیا گوره له آثارو څخه:

# سوالگره نجلۍ

مترجم بناغلی [رشاد]

د «سرسوتي» په ښار کې کاڅتی شوال د ښوزلو غلبلو آسمانونه ولړزول مهاتما بدهـ خپل مریدان راوبلل او بوبو ئي وپوښتېد.

څوك به وی چې دوږو دمړولو ذمه واخلی؟ دښار مالداره سوداگر مرید ئي وویل: سترستا ته ښار له ښاره سره اولوږي مري زه دومره وس نه لرم چې ټول وږي دي ماړه کړای شم.

د کلی ملك وویل: ای مشرّی دوښو ورو ستی څاڅکی می لاترڅارا زده می د غریبانو پر بڅولو (مصائبو) توکړتو کړ دی مگر څه وکړم بڅپل کور کی شومه نه لرم.

د کام خان و اوسیلل او وي ویل: داسې ښکاري چې زما پر کسښتو د بلا ساه ختلې ده دومره به څپیخی راشی چې د باچا د ماليې غاره دې په وروزی څه نه لرم څه وکړم.

تولو زغرده تۀ وکړه د ښار خلکو بو د بل خولو ته سره کتل د مهاتما بدهـ د ستامینده کتو د کاڅتي وهلې ښارلور ته هسی کتل لکه د شپي په ای ته چی ستوري ری په دي نرخ کی یسوي سوالگری په غلی بوونه پر ځان سره راوتښت او د خلکو د منځه راو پاڅېدله د مهاتما بدهـ پښې ئي و نیولي په خورا پسته او خوږه ژبه ئي ورته وویل: پاداره زه چې بوه سوالگره نجلۍ یم دا کار پر خپله غاړه اخلم: دي ښار خلک چې له لوږی به کوکارو دی گرده زما زامن دی او زه به د دوی مړولو لره د ښار په گوټ گوټ کې بلو گرزوم.

د ښار خلکو هیښ پېښ پاته شول چې بوه سوالگره نجلۍ چې بخپله د بوه سوالگر لور او پوي وچي گولي تــه اړه ده څنگه گولای شي چې د درست ښار د مړولو ذمه واخلي.

بوه وبــو ښتېدله « ته څنگه دومره ذمه اخلی ؟ «

سوالگره نجلۍ د خلکو له منځه پاڅېدله او پــه خورا درناوي ئي ورته وویل:-

زما څخه بو کچکول شته زه داډه یم چی هیڅکله به ئي تش نه راوړم زه ترتاسې او تر ټول ښار پیسوزاله اسکېرای او خوار کیږم مگر داډه ارم کله چې تاسی ته د سوال له پاره ودرېږمه نه به مې ترڅو او کله چې کچکول درته و نیسم تش به ئي نه راپرېږدي زه به ستاسی مرسته حاصله کړم ځکه چی خورا تنکی به او تقلوب قل زده ونه را کاږی زما سره د غلو گډامونه شته تاسی به وروا باست چیري ؟

زه به وروایم ستاسی پۀ کورو کی زه به د ښار پر بڼا یا نو پلو گرزوم او بوزلی به مړوم که مې تاسی مرسته و کړی کچکول به مې تل تش نه راځی د دوډۍ ههٔ گولۍ چی په سوال راوړمه په ښوزلو به ئي خورمه زما زده خورا لوی دی تر هو ر ښتی ء

هـ ـ ۀ !

[ د ښښتن په توکل بو د بل مرستیال شی ء کاڅتي به بخپله ورکه شی ] .



ښاغلی مولانا محمد شریف [حبیبی]

ښاغلی مولانا محمد شریف حبیبی زموږ د پښتو لیکوالو څخه دی د [۳۰] کالو راهیسې د دوی مقالې د مملکت په جرائدو کې خپرېږي دا مضامین ئې د هر محله د کابل، کندهار، هلمند په خپرونو کې لیدل سوي دي، مولانا پر ته د نثر څخه نظم هم لیکلای سي.

د یوې موضوع په لیکلو چې پیل کوي دومره چټک پرروان وي لکه د عدلي محکمو محرران چې وثیقې او نور هغه اسناد چې ترزر واره ئې بالا تکرار کړي وي لیکي بالکه د خاشخاشو په کښت کې چې تار باك تولوونکي کوکنار په اېښو وهي کله چې مقاله ترتیب سي نو د یوې غټې حوصلې څښتن کولای سي چې دا مقاله سرتر پایه وګوري ځکه چې مروج اوم ئې مقاله وي ار حجم ئې د کتاب ښاغلی حبیبي پر ته له دې وائي: په موسیقي هم پوهېږم، سره د هغه، چې عمر ئې د پنځوس کالو په شاؤخوا کې دی دعوه کوي چې د ښه آواز څښتن هم یم خو چا ئې تراوسه غزل نه دی اورېدلی ظریف او ساېري سړی دی، د ملګرو ورسره وزي مګر په عین حال کې د پرعصبي دی، یو خوږ مجلس شروع کې لېکن نابېره ئې د خبرو د حرارت درجه لوړه سي او داسې شخړه ځني جوړه سي لکه په او خوشکي کې چې یو چا په پټه د بل چا اوبه پرخپله مځکه تړلي وي بیا هم بېرته د مجلس رنګ په یوه ترخه خندا اوړوي بدې کې شك نسته چې مولانا حبیبي د قام په درد دردمندي خو چې د دې قام یو غړی پلاس ورسي تر ودې یو ئې لا سپك کړي.

اوس نو ښاغلی محمد شریف حبیبي د مرحوم زین العابدین زوی دی ښوونځی ئې ویلی او په خصوص توګه ئې هم د پر تحصیل کړی دی د جراحۍ او طب کورس او دارالمعلمین ئې هم ویلی دی ۱۲ کاله ئې معلمي کړېده، د کندهار ادبي انجمن چې د پښتو د نهضت لوی علم بردارو مولانا ئې څو عمر په غړیتوب

کې هم نشر کړې دی، داد ژوند او کار ؤ بار په فهرست کې ئې څه آزاد شعرونه هم شته خو د [۱۰-۱۱] کالو راهیسې وچ کلك بېکاره او پرېشانه ګرځي، بدې نرخ کې د خلکو د بېقدرۍ څخه ډېر ناراضه دی، د ښاغلي حبیبي خو موږ ته ژبه پښتو ده په عربي، اردو، انګلیسي او پارسي هم پوهېږي، تر موږ دی د څه مستقل آثار و څښتن هم دی چې طبع سوي نه دي او نومونه ئې دادي:-

۱- خواص او عوام.
۲- اوسني سرمایه داران.
۳- اجتماعي زغ.
۴- آس نامه.

کله چې موږ غوښتل چې د مولانا د کلام یوه داسې نمونه چې څه قدر ئې لنډه را ګرځولې وي وموندو آخر مو د هلمند په جریده کې دا مقاله چې [ د لیکنې اسلوب ] ئې عنوان دی وموندل او لاندې در وړاندې کېږي.

## د لیکنې اسلوب

تر له ژوند د یوه اسلوب د مخه څه بڼه او مطلوب بلل کېږي په دې چې اسلوب پخپله د طرز او یوه قانون شکل افاده کوي او ښیي، نو هر شی او کار چې د طرز او قانون د پلوه وي هغه طبیعي منل کېږي او ښه اغېزه لري.

په نېړه «لیکنه» باید طبیعي طرزي او قانوني وي دا ځکه چې لیکنه یو داسې کار او یو داسې ښه ده چې د روزګار پر پاڼه یادګار پاتېږي او بیا نه پاکېږي.

لیکنه هر څوك مني چې خالي له دوو شرطو څخه طبیعي باید نه وي. کله لیکنه تقریري وي کله تنقیدي د تریخه عالم هم دغه ترتیب تل څرګند دوی.

که په رښتیا چا دا ومنله چې عالم هر څو نه چې ښه اري بد هم اري، او دا ښه او دا بد هم یو داسې متضاد دي چې پخپله د عالم طبیعي قانون هم دغه متضاد منلی او وېلی دی. که چېري څوك جدي شي او وغوادي چې دا متضاد و نه مني، او یوه پلو ته چې یوازې «ښه» وېلل شي قائل شي او «بد» نه کي قبول داسې څوك نه څه ویل کېږي آیا دی موفق دی که نه؟

علم داسې څوك چې یوازې ښه مني او بد نه مني، عاقل ورنه وائي.

ځکه د عقل تل دا خو ښه ده چې هر شی باید ښه او موزون وي بد او نامعقول نه وي نو لکه عقل چې تل ستړی او ستومانه دی چې د عالم بد بسایند تر له ښه وګرزوي تر اوسه په چا داسې نه وي او ربدلی یا لیدلی چې دادي عقل موفق شو بد تر له ښه شوه؟

د عقل څښتن چې عاقل نومېږي ښه ورته وګوري چې تر عقل لا

خوار کې بو بقـله ستړی او ستومانه دی.

هر کله چې موږ دا ومنله چې عالم نه پرمخ موزون دی نه ناموزون او عقل یا عاقل هم دا ومنله چې هر موزون ناموزون نه شو او هر ناموزون موزون نه شو. که سړی پوره پردې عقل یا عاقل رغوادی چې د عالم غه طبیعي او باقي نظام او ترکیب بودیلة سره واړوي، یا تو له ښه وګرزوي یا ګرده بد ثابت کړي نو آیا دي عقل ته، عقل یا بد وویل شي؟ او دا عاقل رښتیا عاقل یا بد ویلای شي؟

که د ښو او بدو بدې تحول کې د عقل او عاقل خدمت یوازې انحادوي چې تو له بد ښه کړي یا تو له ښه بد. نو ګمان نه کوو بلکه رد وایو چې د عالم ښه کله بد شو بدی؟ او بد ئې کله ښه. د عقل او د عاقل خدمت هر څو که دغه قدر بولی، چې عقل ښه ښه بولی او بد بد.

لیکن ددې ترکیب اوږ دې متضادو ته تغیر نه شي ور کولای چې بیا نو ښه وي بد نه وي یا بد وي ښه نه وي.

دلته و موږ ته جوته شوه چې د هر ناقد که وغوادی چې خپل تنقید ته خپل جامه وروا غوندی او په نورو الفاظو کې ئې نه بیچی نو خیال کړم چې د تنقید اسلوب هم بخپله دا کېږي او نه بښېږي چې څو نه وزاو معقول دی؟

تنقید بخپله یو داسې کار دی چې ښائی وغوادی ښه بد کړی او بد ښه. که چیری د ناقد ظریه داسې وی لکه چې موږ ویله نو دا نظریه به نه وی ولی په دې حقیقي عقل دا نشي منلای چې د عالم طبیعي نظام دی له خپله حاله دو نه واړوی چې یوازې ښه وی بد نه وی یا بد وی ښه نه وی او که حقیقي عقل هم ددې دوو همسایګانو انفکاک ناممکن بللی وی نو بیا کله عاقل دو نه ځان ستړی کوی چې دا ناممکن دی پیرته ممکن وګرزوی.

له دې پلوه هر ناقد یوازې موظف دی چې د تړیه بد او ښه داسې وښئی چې و نورو ته هم یوازې دغه ښه پلو او بد پلو معلوم شي نه د ښو او بدو خاوندان بدې چې ښه او بد او د دوی عدم انفکاک! او بیا ددې طبیعي وال د جهاني نظام له قراره کله باید کم تحول او تغیر قبول کړی.

اوس نو د هری لیکنی ښئیتن که چیری د ناقد حکم واری نو ښائی د خپل تنقید اړخو نه له پورته ښوونی څخه ښه سره وسنجوی بیا نو تنقید ته لاس ور کـړی.

تنقید که د عقل فکر او سنجش له مخه وشی نو وبلای سو چې عقل تر له عالم یوازې موزون غواړي، مګر داسې کله کېدای سی.

او تنقید که یوازې احساسی وی هغه ممکن د بدو او نامعقولو نقادی او څرګندونه وکړی او نور راضی نه شی چې په سرسره د بدو ښئیتن او یا هغه نامعقول دو نه اثځ کړی چې به پای کې نامعقول خپله نامعقولی و نه منی او یو د بدو ښئیتن و خپلو بدو ته قائل نه شی په دغه وخت کې د هر ناقد تنقید تل د ښې اتیجې ناقد بلکه تل ئې بده نتیجه ور کړیده. که چیری ناقدته کوم غیر طبیعي حرارت او جذبه نه وی پیښه نو ضرور خپل تنقید ته داسې اسلوب ور بخښی چې هم اصل بدست آید و هم یار نه رنجد.

دلته په دې لیکنه کې زموږ غرض دا دی چې د نو او لیکوالو

ښاغلی غلام محي الدین [ایوبي]

# څنګه ژوند؟



نو دا دی چې انسان خپل ځان آرام، نس مند، تن بت او هر څه د شخص دپاره وکړي. بل دا دی چې یو فرد سربېره پر دې دا منظور هم ولري چې نورو ته خدمت وکړي او د ټولنې د خیر، آرامۍ او خوشالۍ وسائل راغونډ او فردي ژوند د ټولنې او اجتماع تر ژوند قربان کړي، په بل عبارت دا چې یو انسان د دې دپاره خپل ضروري احتیاجات برابروي چې فقط په هغه سره د ده ژوند ساتلی وي او بیا دی خپل ژوند د ټولنې دپاره وقف کړي.

نو دې دواړو ته ژوند ویلای شو لېکن آیا دې یو او دها بل ژوند په منځ کې کوم فرق شته او آیا دواړو ته په یوه نظر وګورو؟ که څوک د دې دوو په منځ کې امتیاز او تفریق نشي راوستلای نو حقیقتاً هغه ډېر کوتاه فکره انسان ویلای شو درست دی چې دا هم ژوند دی چې انسان ئې د خپل نس او نفس دپاره وکړي خو که د چا خیال یواځې پر خپل ځان باندې طواف کوي او د فکر دائره ئې دومره محدوده وي چې تر ځان پورته بل هیڅ نشي لیدلای نو دې ژوند ته په اوسني عصر کې چندانې په ښه نظر نه ګوري او بلکه تر دې بل منفور ژوند نشته، دا چې ولې اجتماعي ژوند تر فردي ژوند ډېر اهم شمېرل کېږي څو فلسفې لري چې یو کوچنی حقیقت ئې دا دی: یو فرد نشي کولای چې په یواځې سر خپل ژوند ته ادامه ورکړي او یا خپل ټول ضروریات او اړتیاوې

تو له لیکنې البته یا تقدیري دي یا تنقیدي نو که څوک د لیکنې اسلوب بخوا لا وپېژني لیکنه خپل موقعیت نه بایلي او تنقید یا تقدیر هم دواړه بې هدفه نه پاتېږي چې هر څوک ئې ولولي او بې اختیاره داسې ووائي :-

هر سخن جائی و هر نکته مکانی دارد که څه هم تقدیر یا تنقید د ښو بدو یو ډول څرګندونه ده خو څوک نه وائي چې داسې نه ده بلکې د ونه تصریحات هم په کار نه دي چې د هر ناقد د مرام برخلاف د لیکنې اسلوب د ونه چپ ثابت شي چې یو بله مدعا ځني استفهام شي.

«خوبی که عشق ورزد هرگز هدر نباشد»

برابري کړي نو ددې دپاره چې د فرد ژوند سانلې وي ورته پکار ده چې د ټولنې په حال کې ژوند غوره کي، کوم وخت چې د انسان فکر د فردي ځانځېر څخه و اجتماعي حلقې ته رابورته شو، دلته فرد خپل اومړني حال بدلاوی او د بلې خوا د ده احتیاجات هم د ښخوا څخه ابزخه تغیر کوي نو په دغه وخت کې افراد د خپلو ارتیاؤ د پوره کولو په عزم کې راوزي دا خوښکاره ده چې د انسانانو ارتیاوې ډېرې دي دا هم مسلمه ده چې یو انسان نشي کولای چې په یوازې سر ټوله احتیاجات رفع کړي نو دلته اجتماعي تعاون لازم شو ده مدې حساس ټکي په نسبت هغه فرد چې یوازې خپله خپټه مړوي او نشي خپل فردي ژوند ښه کول غواړي په حقیقت کې د ټولو افرادو په سعادت، آرامی او خوشالي کې لغتي وهي چې دا کار په حقیقت کې لوی خیانت دی .

دبلې خوا کوم وخت چې افراد د ټولنې په حال کې سره راغونډ شول د دوی په منځ کې ځینې قرارداد نه موجود دي چې

له اردو څخه:

د ښاغلي سربن ژباړه

# د کندهار د روزگان

## د شالي درې کتیبه

روزگان چې وشمالي کونجي ته د کندهار واقع دی د جنوبي غور او زابلستان له منځنیو تاریخي سیمو څخه گڼل کېږي نږدې و ظهورته د اسلام یا تراسلام دمخه د «ابدل خان سیمه» یا «هیتالیت هون سیمه» مرکز او دغې کورني اخیرنیو پاچهانو دلته حکومت کاوه چې د خوا کمنو نو مړ نه ئې د پښتو عناصر اري مثلاً

باید د هغه په وجه یو د بل پر حق اضافه د بل چا و مال او ناموس ته لاس و نه غزوي بلکه بالعکس باید د یوې ټولنې افراد یو د بل لاس و نیسی کومک سره و کي ددې دپاره چې هم ئې فردي او هم ئې اجتماعي ژوند سانلې وي لازمه ده چې نه شخصي منظور تېر شي او اجتماعي هدف ټینګ کړي .

نو ددې پورته خبرو څخه دا څرګنده شوه چې شخصي ژوند هیڅ ارزښ او قیمت نلري بلکه ژوند باید ددې دپاره وي چې د ټولنې خیر، سعادت، آرامی خوشالي او پېشرفت په ښه سره حاصل شي .

لکه د مهر کولا، له کلمې څخه ئې چې په پښتو کې د میر کهول (د لمر د کورنی) مفهوم اخیستل کېږي او یا د تورمان کلمه چې کټ مټ د تورمن (توري‌وهونکی) معنی لري .

دا نه ده معلومه چې د تومودي کهول ژبه په څه دول وه اما د تومو نو له سیاق څخه ئې دا معلومېږي چې پښتو به وه او یا و پښتو ته به نږدې کومه ژبه وه .

ددې و ګرو چې دلته ئې تومیاد سو ده لېز آثار باقي پاته دي چې دغه د روزګان کشف سوي کتیبه ئې له یادګارو څخه ګڼل کېږي او ایکنه ئې تراوسه پورې بربوړه او په ډېره باندې د نرموړي ځای په ښځه

ميلې کې د شال د دري ډاګ کزرو
د کلا په مخ کې موجوده ده
څو کرښې ئې په يوناني خط
او څو ئې په عربي حروفو ليکل
شوي دي د دغو کلمو ليکنه په
غالباً په شپږم يا اووم هجري قرن
پورې مربوطه وي .

څنګه چې دا کتيبه له مهمو
تاريخي اثرو څخه ده نو هغه
مقاله چې په انګليسي ژبه سره
ددې په باره کې ليکل شوېده
د ويونکو د استفادې له پاره
ترجمه کوم .

ښاغلي «اې ، دي ، ايچ ، بيور» د
اکسفورډ د پوهنتون د تاريخ
پروفيسور ددې کتيبې په باره
کې چې پخپلو سترګو ئې ليدلې
او د پښور د کتيبو له ليکنو
سره ئې مقايسه کړېده داسې
ليکي :-

د هون ابيض د زمانې دوې
کتيبې چې يو له بله سره مشابه
او ما ليکونکي په روزګان
نومي ځای کې چې د کندهار
په دوه سوه ميلې کې و شمالي
مغربي ګوټ ته واقع دی
ملاحظه او په ډېر دقت سره مې
ترخپل نظر تېرې کړې هم دغه
شانته مې د پښور د موزيم د
درو مبهمو کتيبو په باره کې
هم ډېر توقعات غوښتې کړه .

د روزګان د دوو کتيبو ډېره
صافه برخه په يوناني شکسته
ليک سره ده چې د نومونو نژاد
په عصر کې مستعمل و او بيا په
مسيحي زمانه کې د هيتولايټ-
کرسيوه په نامه سره معروف
شو په يقيني ډول سره ښم ويلای
چې دا کتيبې په کومه ژبه سره
دي که څه هم تعبير او تفسير به ئې
څه اشکالات ولري اما له ښه
مرغه په ئې صافه حکاکي ويل
او ترجمه کول اسانه کړي د
حروفو علامات ئې داډول دي .

MIHROZKI مهروزکي
ZAOLOO زالو
SHAHO شاهو
BOGO'SCRI باګوسري

هغه پاچا چې نوم ئې دلته
اخيستل شوی دی ښائي چې
هغه معروف شخصيت به وي چې
په پنځم ميلادي قرن کې د
هون سپين حکمران و دا زه
له ګومانه وايم ولې چې صحيح
صورت او اصلي نوم ئې په يقيني
ډول نه دی معلوم .

د پښور د رې کتيبې چې دوې
ئې په دوو ژبو سره ليکل شوي
او درېيمه ئې پخوا ميندل شوې دي
د ارغونو آثارو پوهانو ئې په
توضيح کې له ډېرو زحمتو سره
مخامخ شوه څو مطلوبې نتيجې
ئې ځني اخذ کړې يوه له دې
کتيبو څخه چې د پښور د
موزيم ۱۵ لمبر لري يوه مستقيم
خط ئې يو پردريمه برخه له
چپې ګوښې څخه پر دوو برخو
ويشلې ده دا کتيبه چې د
خزانې د مقام له «آی دګ-
سپين وام» نومې ځای څخه
شلو ميله لېرې د مير علي نومي
ځای په توچي ايجنسي کې
ميندل شوې وه د کپتان
«اې، ا، چ، بارنس» له طرفه څخه
و نوموړې موزيم ته اهدا شوه .

د مخه مې وويل : چې ددې
کتيبې ارزدوالی د يوه عمودي
خط په ذريعه سره پر دوو برخو
ويشل شوې دي د راسته پلو د
حروفو حکاکي ئې چې شلو
کرښې ده ډېره خفيفه ده مګر
د پاريس د ارغونو آثارو پو
پوهان ـ دونکي ئې ليکنه له
منګولي ژبې څخه ګڼي د
کېڼ طرف حروف ئې چې
و پنځو کرښو ته رسيږي په
سرادا نومې ژبه سره دي چې د
مبهم والي او غامض توب له حيثه
څخه د مطلب اخيستنه ور څخه
ډېره سخته ده خو سره له دې ئې

په بعضو ځایو کې د «برو-
ئین BROAIN» لفظ
خال، خال او په اومری ؤ ځلرمه
کرښه کې ئې د «پیغمبر»
لفظ په مشکوک ډول ویل کېږي
مګر کله چې موږ په پاریس کې
د بوه منګولي عالم ته ورولېږله
هغه اومری ایکه د «تي نامام» په
نامه سره شروع کړی سیله
دي درو لفظو ښځه بیا د ساموا
لفظ دی چې له ساتری عصره
سره تعلق لري په دریمه ایکه
کې د «بهوریا» پاچا نوم اخیستل
شوی دی چې موږ دا نوم په
«نواتساچندراه» سره تعبیر-
ولای شو.

بد بخته لیکه په «پترا» سره
چې د زړې معنی ښندي انجام
شوې ده اما نوري لیکې ئې بېخي
محوه شوي او ویلو قابل
نه دي وچه پلو ته بعضي نا تمامې
جملې د سرادا په ډول سره په
ناګري لیك سره لیدل کېږي
د راستې طرف بعضی کلمې هم
نه ویل کېږي د منګولي ژبې
پوهان ئې د لیکنې طرز و
ترکي یا منګولي ته ورته
بولي.

دا مضمون ښاغلي فاضل کهزاد ښو کاله پخوا لیکلی او ښاغلي محی الدین انو پښتو کړی دی ځکه چې د کندهار په بوه تاریخي ارخ اړه لري او موږ د مجلې د پاره وټا کی.

# د دمراسي غونډۍ

## د کندهار د جنوب غرب په ۱۶ میلی کې

د دمراسي غونډۍ داسې نوم دی چې بدې ښو نږدو کلو کې زموږ د وطن د باستان شناسۍ په مطالعاتو کې یادیږي، لیکن تراوسه پورې د دغه موقعیت مکشوفه آثار او اهمیت د قبل التاریخ دورو د تهذیب په مراتبو کې نه دی پېژندل شوی ددې ځای پېژندګلوي د جغرافیائي موقعیت او د باستان-شناسۍ د اهمیت په لحاظ داسې ایجابوي چې باید د افغانستان د جنوب غرب د ارغنداب، هلمند او د سیستان د همون د مجراؤ ته منځ نظر واچول شي او د تحقیقاتو نتیجه ئې مختصراً و لیکل شي.

په اوس وخت کې کوم معلومات چې د پوهانو په لاس کې دي د قطعي شواهدو په اساس په اثبات رسوي چې نږدې شرق مخصوصاً د نیل، دجلې، او فرات حوزې د بوه عمومي واحد په حیث د بشر د رهایش د قدیمترینو نقاطو ښځه وه، دغه رنګه دا نظریه هم په ډېر علمي شواهدو منلی ده چې ددې قدیمي حوزې په منځ کې بشري ژوند لمړنۍ خوا د چین او د بلې خوا اندوس د حوزې یعنې د سند سره تعلقات در لودل، ددې تعلقاتو د څرنګه والي مطالعه او مخصوصاً هغه لار چې دغه تعلقات پرې صورت موندلی دی د افغانستان د قبل-التاریخي تهذیب د مراتبو د تدقیق لپاره د دقت او ډېر اهمیت وړ ده، ولې چې افغانستان داسې ځکه ده چې د بین-النهرین، چین او سند د حوزو تر منځ واقع شوېده.

تر هغه ځایه چې شواهد څرګندوي د قبل التاریخ په

دورو کې د دغو ذکر شوو نقطو ترمنځ چې ارتباط صورت موندلی دی د دوو لارو څخه وو چې يوه يې شمالي او بله يې جنوبي لار ويلای شو، يعني ترتيب چې اومړی د ايران د شمال شرق او د روسيې د جنوب شنيلی د چين دغرو او د ښتو سره موښتی او دوهم د ايران د جنوب څخه په مکران او بلوچستان باندی منتهي کېږي، د هغه تحقيقاتو له رويه چې د امريکائي حفرياتو هيئت په افغاني سيستان کې په عمل راوړي دي داسې څرګنديږي چې د شمالي لاري څخه د هري رود په حدودو کې بوښاخ، دفراه، هرات، هلمند او ارغنداب و لور ته منشعب کېږي او د واترك ارغنداب د حوزي د لاري څخه د سند و حوزي ته منتهي کېږي، په بل عبارت د واترك فرارود د خاورو په منځ کې چې افغاني سيستان سراسر په بر کې نيسي ديوه جغرافيائي مشخص واحد په حيث د قبل التاريخ په مطالعاتو کې ئې موقع نيولې ده. شك نشته چې په دغه ۳۰ ورو ستنيو کلو کې د باستان شناسۍ تحقيقات چې پر علمي اصولو باندی متکی دی زموږ په مملکت کې جريان لري د قبل التاريخ په زمينه کې فقط له ۱۵ کالو څخه متوجه شوی يو او په دې ۱۵ کالو کې هم ډېر کارونه د ۵ يا ٦ ورو ستنيو کالو راهيسې شوی دي، مګر د باستان شناسۍ د هيئتو د فعاليت حوزې (که فرانسوي دي که امريکائي) تو له پر افغاني سيستان باندی منحصره دي او د هغه جغرافيائي ساحه ښوائي چې د نادعلي، چخانسور، او د کندهار د پنجوائي د د مراسی غوندۍ ترمنځ محدوده بولو البته دې ساحې موقعيت د جغرافيې د حيثه ډېر مهم دی او د سنداواسو د حوزو او د ايران د شرقي حصصو د قبل التاريخي تپو ترمنځ د ارتباط عامل ګڼلای شی، او ډېر امکان لري چې د دې ځای څخه نوی رڼاوی د سند د حوزې او د شرقي ايران د خاورې پر قبل التاريخ مدنيت باندی ولويږي. لکه چې مستر «فيرسرويس» د امريکا د باستان شناسۍ د هيئت مدير د افغانستان او مخصوصاً د افغاني سيستان، ارغنداب او ترك د حوزو په باب يخپله يوه مقاله کې داسې د نظرئيې اظهار کړی دی.

[افغانستان نه يوازې د ارتباطی موقعيت په درلولو سره د قبل التاريخ په تحقيقاتو کې ډېر اهميت لري، بلکه په داخل کې د خپلې خاورې د راوونکی د داسې منطقو دی چې په هغه کې د مملکت قديمه مدنيتو نو نشونما پيدا کړی او څرنګه چې دغو منطقو په قديمه زمانه کې مهم موقعيت درلود په هغه ځای کې د قبل التاريخي مسائلو تحقيق ډېر دلچسپ دی د افغانستان خاوره د غرنيو علاقو او جلګه ئې نقاطو څخه مرکبه ده، په اوږو منطقو کې کرهڼه په اوسنيو وسائلو سره لکه چې په کابل او غزني کې عملي کېږي د قبل التاريخ په دورو کې ممکنه وه.

که د افغانستان له خاورې څخه د غه نقطې بوې خوا ته پريږدو، نوری ځلور منطقې پاتې کېږي چې د ډېرو اوبو او د حاصل خيزې خاورې په درلولو سره د اولوزمانو د کرهڼې د پاره اماده وه.

دغه څلور نقطې عبارت دي: د آمو دریاب د جنوبي حوزې د شمال څخه، هریرود د پراخې حوزې د غرب څخه، د سیستان د حوزې د جنوب غرب څخه د فراه رود د وادۍ په شمول سره د هلمند او ارغنداب د مشترکې حوزې د جنوب غرب څخه مخصوصاً د کندهار ما حول له خاوره.

دغه څلور نقطې د مساعدې خاورې او اوبو په درلودلو سره چې د بشر د ارام او خوړو کرهنې د اساسي شرایطو څخه حسابیږي داسې منطقې دي چې په هغه ځای کې به د باستان شناسۍ تحقیقات، د ژوند مرتبې او د دې مملکت د قدیمو اوسېدونکو د قبل التاریخ تمدن روښانه کړي].

څرنګه چې پدې نظریه کې پېش ګوئي او تصریح شوېده او حتی بخیله دغه نظریه تر یوه حده پورې پر شواهدو متکي ده چې د مخه له دې قاطو څخه و لاس ته راغلې ده زموږ د باستان شناسۍ د هیئت فعالیت د قبل التاریخ په زمینه کې تر ټولو ډېر د هلمند او ارغنداب د مشترکې حوزې وخوا ته دی.

د مراسي غونډۍ چې ددې مقالې عنوان ټاکل شوی دی، یوه داسې غونډۍ ده چې د کندهار د ښار د جنوب غرب په ۱٦ میلۍ کې د پنجوائي په مشهور کلي کې واقع ده، په ۱۹۵۰ او ۱۹۵۱ کلو کې چې د امریکائي حفریاتو د هیئت غړي د ارغنداب او هلمند د کښته حوزې په خاورو کې په تحقیقاتو اخته وه [مستر دوپري] یو د دغه هیئت د غړو څخه د دغې غونډۍ په کشف او سره بریالی شو او د یوې کوچنۍ او محدودې ساحې چې ٦ متره اوږدوالی او ۲ متره ئې بر درلودی د کیندلو کار ئې شروع کړ او تر ٦ متره ژوروالي وروسته ئې د یوه جر په کیندلو اقدام وکی په نتیجه کې د ځینو کودرو او مخصوصاً د ښځو د خټو د کوچنۍ مجسمې په پیدا کولو بریالی شو.

دغه کوچنۍ مجسمه د فراوانۍ او حاصل خیزۍ د ربة النوع د هیکل څخه عبارت دی چې تاریخ ئې د ۲ او ۳ زرو، ق م کلو په مابین کې بولي البته ددې ربة النوع په څېر د نژدې شرق په ټولو ساحو کې مجسمې پیدا شوي دي.

لیکن ددې کشفېدو اهمیت د هیکل سازۍ په شکل او د کار په سبک پورې تړلی دی او د سند د ناوې د اوسېدونکو د عمل طرز را په یادوي، څرنګه چې ټوله خبر دی د ۲۵ کالو راهیسې د سرجان مارشال د اکتشافاتو په اثر د سند په حوزه کې نوې مدنیت: [اندوس د تهذیب] په نامه د ژوبوبر سر ورد ګرز بدلی دی، د سند دغه تهذیب په ۳-٤ زرو، ق م کلو کې د بین النهرین او نیل د حوزو د مدنیت سره ارتباط او تعلقات درلودل او دا ارتباط د یوې لارې د افغانستان د جنوب غربي خاورې یعنې د هلمند او ارغنداب د حوزو څخه کېدی.

ددې لامله باستان شناسانو د ارغنداب او سند د حوزو د خاورو مابین ته ډېر اهمیت ور کړی او د بلوچستان په پهلو پهلو ځایو، کویټه او د ژوب په دره کې په تحقیقاتو اخته شوي دي د کویټې د قبل التاریخ تهذیبي مرتبې ئې په عمومي ډول پر څلورو مرحلو وېشلې دي چې د [سادت تهذیب] ئې وروستۍ بللی دی.

د مستر فیرسروېس د نظرئې

# همايوني معظم اعليحضرت په کندهار کې

څرنګه چې خبر مو اخيستي دی په دې مسافرت کې د شاهانه ذات سره د دربار تر ملتزمينو علاوه ډاکټر عبدالظاهر د ملي شورا رئيس، د کابينې د غړو څخه: ښاغلی عبدالله ملکيار د ماليې وزير او د هلمند د ناوې د پراختيا رئيس، بريد جنرال محمد عظيم د کار د قراؤ قوماندان او د فوائد عامې د وزارت معين، د اتمې فرقې د کنډک قوماندان جګړن سردار عبدالولی، د صدارت عظمی د اداري د تفتيش د رياست د تفتيش د دوهم ګروپ د رئيس کفيل ښاغلی سردار سلطان محمود غازي، ښاغلی عبدالهادی داوی، د شاهانه حضور د سرمنشي کفيل نور محمد کهګدای، د شاهانه حضور مطبوعاتي مشاور استاد خليل الله خليلي، د شاهانه حضور مصاحب سردار خليل الله عنايت سراج او د شاهانه حضور سرياور جنرال محمد عمر د شاهانه ذات سره ملګري دي.

د مطبوعاتو د مستقل رياست د عکاسۍ او فلم اخيستلو يو هيئت پخوا د همايوني ذات د سفر د جريانانو د عکاسۍ په غرض کندهار ته راغلي وو.

ګران ټولواك د ماښپين پر درو نيمو بجو د تخنيکي ښوونځي ته تشريف يووړ او د کار غرفو ئې د پهلو پهلو د دستګاوو سره وکتل، اعليحضرت همايوني په مربوطو صنائعو کې د زده کوونکو د انکشاف څخه خوښي ښکاره کړه.

همايوني معظم اعليحضرت پر ٤ بجې او ١٥ دقيقې د کندهار د مېوې د ساتلو او صادرولو مؤسسې ته تشريف يووړ او د مؤسسې د کار جريان ئې وکوت، د مؤسسې رئيس، داخلي او خارجي کار کوونکو په هر ځاى کې د کار راپورټ د همايوني ذات حضور ته توضيح کاوه.

د مؤسسې د کتلو وروسته هغو کسانو چې په دې دستګاه کې برخه او سهم لري او د شاهانه ذات د لارښوونو او د دې مؤسسې په انکشاف او هغو ګټو کې چې له دې لارې څخه د کندهار باغوالو ته رسېږي د دولت د توجه څخه د همايوني ذات حضور ته د تشکر اظهار وکړ، همايوني معظم اعليحضرت

---

په قرار د ګلي لوښو او نقشو د اشکالو او هيکلو د جوړښت د قطع نظره د سادت د تهذيب کويټې او د کندهار د د مراسي غونډيه د تهذيب تر منځ مخصوص ورته والی (شباهت) موجود دی.

او پېله شکه دغه دوه مدنيتونه هم عصره دي، دغه راز که د کندهار د [د مراسي تهذيب] د ژوب د درې او وختي پورته د جنوب خوا ته دلو والي د درې د تهذيب سره چې د اندوس پر غاړه واقع دی ورته والی لري.

د دې ټولنو د روبه که څه هم د پر محدود ري و بلاى شو چې د ق م ۲-۳ زرو کالو په مابين کې د ارغنداب او سند د حوزو تر منځ ګڼه مدنيت غوړېدلی ؤ.

د موسسې د کار د پرمختګ او پدې ګټور کار کې د خلکو د برخې اخیستلو څخه خوښي وکړه او ددې د کړنو توصیه یې وفرمایله.

د ملوکانه ذات فرمایشاتو د دوی د امادګۍ په ښکاره کولو او تشکر ویلو سره خاتمه ومونده.

ګران ټولواک وروسته تردې د فیل کوه د برېښنا دستګاه ته چې پدې وروستیو ورځو کې یې کار پیل شوی دی تشریف یوړ، ښاغلي فرهاد د برېښنا د لوی شرکت رئیس د دې دستګاه په شاوخوا کې د همایوني حضور ته لازم توضیحات وړاندې کړل شاهانه ذات پر ۵ بجې او ۴۵ دقیقې د الکتریکي غوټۍ په کښېکښلو سره د لومړي وار دپاره فابریکه پرانیستلې اوددې دستګاه په کاراچولو یې د کندهار د ښار د روښانه کولو او د ګړوند آرامۍ او راحت دپاره یو بل ګام وبللو او د مرظفو کارکوونکو څخه یې خوښي وکړه.

همایوني ذات په دامامانو وهغې میلمستیا ته تشریف راوړ چې د کندهار د عسکري قوماندانۍ له خوا د دوی د تشریف راوړلو په درناوي د فرقې په قرارګاه کې جوړه شوې وه پدې میلمستیا کې د کندهار د ښار او شاوخوا مشرو کسانو او مشرانو د شاهانه ذات اردوا فسرانو، ملکي مامورینو او د موسسو رئیسانو د خپلو مېرمنو سره ګډون کړی ؤ.

د حمل په ۳۱ نېټه ګران ټولواک د سهار له ۹ بجو څخه د ماپښین تر یوې بجې پورې د ظاهرشاهي کانال د جنوبي ترانک د ښاخ کارونه او د دغه کانال د کانکرټي ودانۍ د هوائي د ګرودانۍ د کندهار او کابل د عمومي لین د شروع کېدو د کار جریان او د لارې د جوړولو دستګاوې کتلې چې د کار د پرمختګ څخه یې موظفو مامورینو او خارجي مهندسینو ته خوشالي ښکاره کړه. معظم اعلیحضرت تر یوې بجې وروسته دارغنداو بند ته تشریف یووړ او د غرمې ډوډۍ یې هلته وخوړله د ګرشک د اعلی حکومت کفیل او د هلمند د ناوې د ریاست معاون ډاکټر عبدالقیوم د بند د مامورینو سره د ګران ټولواک په حضور مشرف سول شاهانه ذات پر ۷ بجو او ۱۵ دقیقو بېرته خپلې قرارګاه ته تشریف راووړ، په دغه ماښام مېشتو ارشاؤ خوا لحا بو مخور، عسکري صاحبمنصبان، د دائرو او موسسو رئیسان د شاهانه ذات په حضور مشرف او پر سلطنتي مېز یې ډوډۍ وخوړله.

د ثور په لومړۍ نېټه پر ۱۰ بجې چې معظم ټولواک د خرقې مبارکې زیارت وکړ بیا د لوی احمدشاه بابا او ملي زعیم میرویس خان و آرامګاه ته ورغی او فاتحه یې وکړه وروسته یې د مملکت د نورو سیمو د کتلو په نیت له کندهار څخه لښکرګاه ته تشریف یووړ.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR , AFGHANISTAN

EDITOR A.M 'KARZI'

(MAY) 1962

GOVERNMENTAL PRESS